اخبارونونه استفاده شوې ده.

۱۵۷- په دې برخه کې هم له نړیوالو خبري آژانسونو، فرهنګ سیاسي جدید او زما له شخصي یادداشتونو څخه استفاده شوې ده.

[٤]

# دکمونیستي روسیې له خوا
# د دوستۍ په جامه کې د دښمنۍ پرمخ بیول

د شلمې پېړۍ د دوهمې لسیزې په وروستیو کلونو کې هم په روسیه او هم په افغانستان کې بنیادي سیاسي بدلونونه راغلل، دد واړو د حکومتونوا دامنې له ستمې بدلې او په زړو او وروستو بنستونو یې نوې مانې ور دانې شوې هغه داچې په روسیه کې د ۱۹۱۷ع کال داکتوبر کمونستي (۱۸) خونړۍ کودتا وشوه، د تزاریانو زړه ، وروسته استعماري امپراتوري یې رانسکوره کړه او دهغې پرکنډه والو یې د سوسیال امپریالیزم نوې بنکیلاکی مانۍ جوړه کړه او په افغانستان کې دځوانانو یوه روښنفکرۍ قیام دانګریزانو ګوډاګی واکمن امیر حبیب الله خان د ۱۹۱۹ع کال دفرورۍ په ۲۰ نېټه دشپې په تیاره کې له منځه یوووړ او دافغانستان نوی ځوان تولواک له انګریزي ښکیلاک نه دافغانستان دبشپړې آزادۍ اعلان وکړ (۱۹)

دې ادلون بدلون کې لینن د روسیې استعماری اودهیواد ونو

د لاندې کولو ستراتېژۍ تر څو اهم پیاوړې او پخه کړه خو دهغه تاکتیکونه یې بېخي بدل کړل او خپله پالیسی او دپلوماسی یې له نوي سره بنیاد گذاري کړه، دخپلو تجاوزونو او تېرې وله پاره یې یو نوی قاموس جوړ کړ دظلم نوم یې عدل، دجنگ نوم یې سوله، د دښمنۍ نوم یې دوستي او د تېري نوم یې ورورې کښېښود او په دې توگه یې دانساني قاموس ټول اصلونه اپوټه او سرچپه تعبیر کړل او له دې لارې یې له ملکونو سره راشې درشې پیل کړل و غوښتل او د وخت دتقاضا سره سم یې هر دول خوږې او غوړې وعدې وکړې.

دلینین وحشي کمونستي رژیم په هېواد کې دننه په وحشت پښې ټينگې کړې خو مقاومت تر دېره ورسره روان و اما له دیپلوماتیک او نړیوال نظره دا غیرانساني رژیم کلونه - کلونه په تجرید او انزوا کې پاتې شو او نړیوالو په رسمیت ونه پېژاند او په همدا سې تجریدي حالت کې پوره دوه کلونه پرې تېر شوي وو چې په ۱۹۱۹ع کال کې دافغان او انگلیس تر منځ داستقلال جنگ ونښت، د روس کمونستي رژیم له موقع نه استفاده وکړه او د ترکستان تر لاس لاندې جمهوریتیا دباندنیو چارو د کمیسارۍ له خوا یې دافغانستان په نوم یو رسمي پیغام صادر کړ چې یکي ویل شوي وو :

« دجمهوري روسیې حکومت هغه ټول تړونونه چې د روسیې تزاري حکومت د نړۍ له حریصې امپراتورۍ برتانیې سره د قسطنطنیې، ترکیې ایران او افغانستان دخاورو د وېشلو په باب کړي دي منسوخ گڼي او د دې پالیسۍ له مخې چې موږ به دهیڅ هېواد خاوره

نه لاندې کوو او د خپلو کوچنیو کاوبندو هېوادو خپلواکي به په رسمیت پېژنو او له دوی سره به دوستانه اړیکې او تجارتي روابط ټینګوو، تاسو ته د دوستۍ لاس درغزوو ... » (۲۰)

او هم د یوې ابلاغیې په شرح کې د روسانو له خوا هغه تړون لغو وبلل شو چې په ۱۹۰۷ ع کال کې روسانو له انګریزانو سره کړی و او په هغه کې یې افغانستان د انګریزانو د نفوذ ساحه بللې او له افغانستان سره یې د انګریز له لارې د دیپلوماتیکو اړیکو ټینګول منلي وو (۲۱).

دا اعلامیه د ۱۹۱۹ ع کال د مارچ په ۲۷ نېټه افغانستان ته راولېږله شوه او دا داسې وخت و چې له انګریزانو سره د افغانانو د استقلال جنګ په خرپ روان و، د افغانستان حکومت له یوې خوا د افغانستان د هغو غصب شویو ځایو چې تزاریانو له افغانستان نه په زور نیولي وي د بیا تر لاسه کولو وعدې خوشاله کړ او له بلې خوا یې اړه درلوده چې د انګریز په مقابل کې د وسله وال جنګ تر څنګ له دیپلوماتیکو لارو نه هم کار واخلي نو د روس دې غږ ته یې مثبت ځواب ورکړ او د افغانستان د آزادۍ هیأت یې د روس له لارې اروپا ته ولېږه او زموږ آزادي روسیې په رسمیت وپېژندله او افغانستان هم د روسیې نوی رژیم په رسمیت وپېژاند (۲۲).

روس چې او س د تېرې تېرې توره دوره ښمو په پاسته تیکې کې اچولې وه، د دښمنۍ تر څه زهر یې د دوستۍ په خوږو پتاسو کې ځای په ځای کړي وو او د وسله والو تېریو لاره یې په پستو او خوږو تجارتي سیاسي، فرهنګي او نورو تړونو بدله کړې وه او له دې لارې

یې خپل ښکیلاکي اهداف په نړۍ کې پر مخ بیول، افغانستان ته یې د یوه نښتي همسایه په توګه ترهرڅه زیات توجه درلوده، دافغانستان دوروسته پاتې هېواد له اقتصادي پسمانیو او دانګرېز سره دافغانانو له نه پخولا کېدونکې دښمنۍ څخه یې ښه ګټه اوچته کړه او په خلاص مټ یې د دوستۍ په جامه کې د « دوراهدافه » ښکیلاکي ترونونو لړۍ روانه کړه. همداوخت یې د رسمي مقاماتو په وسیله افغانستان ته داډ ورکاوه چې : « روسان په افغانستان کې دکمونیزم دخپرولو اراده نه لري » د روسیې دباندنیو چارو وزیر په افغانستان کې خپل نماینده ته ولیکل : « تاسې باید په جدي ډول په افغانستان کې د کمونیزم دخپرولو له پاره له مصنوعي هڅو او فاحشو تېروتنو څخه ډډه وکړئ ځکه موږ دافغانستان حکومت ته وایو : موږ یو ډول جوړښت او تګلارلرو او ستاسو عقیده بله ده خو زموږ دواړو هڅې دلته سره غوټه کېږي چې موږ دواړه دخپلو خلکو دخودارادیت دټینګښت ، د بشپړ استقلال او د دوی د آزاد فعالیت له پاره هڅه کوو ؛ موږ په ټوله معنی هر ډول داسې همکارۍ ته چې ستاسو دخلکو پرمختګ او ترقۍ کې برخه ولري چمتو یو خو هېڅکله په نظر کې نه لرو ستاسو په خلکو داسې پروګرام ومنو چې د دوی له پاره دا پروګرام د دوی په پرمختګ کې بېګانه او پردی وګڼل شي ... » (۲۳) په همدې متن یو ډاډ لیک لینن هم افغانستان ته رالیږلی و (۲٤) .

تردې وروسته روسانو په افغانستان کې خپله ښکیلاکي پالیسي له ښځینو او غورمالیو نه پیل کړه ، د ۱۹۲۰ ع کال داګست په ۱۸ مه نېټه

یې افغانستان ته درادیوتلګراف یوه دستګاه دسوغات په توګه
ورانده کړه او دروسیې فوق العاده سفیر د دې دستګاه دمنلو
له پاره د افغانستان دخارجه چارو د وزارت په نوم داسې چاپلوسانه
لیک هم ورسره مل کړ:

«داګست په ۱٤ مه نېټه کابل ته یوړاډیوستېشن دمتخصصینو
او میخانیکانوله یوې ډلې سره راورسېدلی، دشوروي روسیې
فیډرالي حکومت دخپلواک افغانستان له اعلیحضرت څخه غواړي
چې دا دستګاه دهغې دوستۍ دښکارندوی په ډول چې د دواړو
هېوادونو ترمنځ موجوده ده دیوه کوچني سوغات په توګه ومني.
ډېرخوښ یم چې دخپل حکومت دا امر په ځای کړم چې دا له نړۍ او
آزاد افغانستان سره چې دخپلې خپلواکۍ دټینګښت له پاره په توده
مبارزه بوخت دی دلویې شوروي روسیې دجمهوریت ددوستۍ
دښواړیکو او باور د تائید وسیله ده، هیله ده چې تاسوجلالتمآب
به یې د مهربانۍ له مخې نه رد وئ، دا معلومات به د اعلیحضرت
لورحضورته رسوئ او د دوی دموافقې په صورت کې به که دا سوغات
یې ومانه لازم امر صادر کړئ څو یوځوک وټاکل شي چې دراډیو
د دې مرکز د ځای ټاکلو او نصبولو په کار کې لازم اقدامات وکړي».[٢٥]

خومونږ پوهېږو چې دغورمالۍ د دې خوږو الفاظو ترشا د روس
هغه اوږد وخته (طویل المدت) ښکېلاکي هدف پروت و چې بیا یې وخت
د دې راډیوتلګراف دتسخیرله لارې افغانستان لاندې کړي لکه د
۱۳۵۷ کال د ثورد خونړۍ کودتا په ورځ یې چې دراډیو د مؤثرې

وسیلې په نیولوسره دافغانستان پوځ حکومت رانسکورکړاوبیا یې د همدې وسیلې له لارې د ۱۳۵۸ کال دجدي په شپږمه نېټه له تاشکند نه دکابل راډیوڅپې لاندې اودخپل شرمېدلې کوډاکې ببرک وینا یې دکابل راډیوپه نامه تر ې نشرکړه (۲۶).

[ ۵ ]

# د دوستۍ تړون کول
# او د بخارا او خیوې په نیولو سره یې ماتول

روابطو په ټوټنده او تود والي د انکشاف او پراختیا لاره وهله، وروسته د افغانستان او روسیې د دوستۍ د تړون مسوده هم تسوید او بیا د ۱۹۲۱ع کال د فرورۍ په ۲۸ نېټه تصویب شوه؛ په دې تړون کې درې مهمې مادې د افغانستان د امیالو او اهدافو په ګټه ځای شوې وې او د تړون د اوومې، اتمې او نهمې مادې په ترڅ کې یې وعده ورکړه چې: « د وارې خواوې د ختیځو هېوادو آزادي د دوی له خوښې او د دوی له ارادې سره د رناوی ورېږولي، دوارې خواوې د خیوې او بخارا د دولت حقیقي آزادي او هر ډول حکومت چې د دوی خلک غواړي مني، روسیه وعده ورکوي هغه ټولې سیمې چې تزاري دولت له افغانستان نه بېلې کړې د هغې ځای د خلکو له خوښې سره سم بېرته افغانستان ته سپاري (۲۷).

خو دې کاغذي وعدو رنګ لانه وو وچ شوی چې روسانو

عملاً په خپوه او بخارا کې لاس وهنې پيل کړې او دلاندې کولو په تکل يې شول ، دافغانستان له خوا د تړون د اتمې او نهمې ـ مادې د عملي کېدو غوښتنه کېده خو روس به ځواب پرېښوده او ځرنګه چې د دروغو مزل لنډ وي نو افغانستان ته ډاګېزه شوه چې د روس کاغذي وعدې يوڅه دي او دعمل په ميدان کې دهغو په عکس کار کوي .

افغانستان د موضوع د ښه سپيناوي له پاره د اروابناد عبدالهادي داوي په مشرۍ يو هيأت وټاکه څوله روسانو سره دافغانستان دغصيبو شويو خاورو دبيا تر لاسه کولو په باب وغږېږي او دخپلوا کې بخارا په خاوره کې د روسانو د مداخلې په باب معلومات ترلاسه کړي ، په دې باب اوږدې مکاتبې وشوې چې نتيجه يې د روسيې له خوا ځواب نه ورکول وو (۲۸) دافغانستان له زيات ټينګار نه وروسته چې يوڅل بيا خبرې و نښلېدې ، په دې خبرو کې افغاني هيأت د بخارا په آزادۍ اصرار کاوه او په بخارا کې يې د روسيې د پوځ موجوديت او زياتوالی د بخارا د استقلال منافی باله ، خبرې دېرې وشوې خو په پای کې روسي سفير وويل : «موږ د بخارا په خوښه او غوښتنه دوی ته پوځي امداد رالېږلی دی ! » خو د افغانستان لوری ورته وويل چې : زموږ او ستاسو د دوستۍ په تړون کې بخارا آزاده ښودله شوې او په دې تړون کې تعهد لرونو که تاسوله بخارا نه خپل پوځونه نه باسئ نو موږ هم د بخارا د مرستې له پاره هغې خاورې ته پوځونه لېږو ! »

خوړوسي سفیر په پړوړې وویل : «که بخارا ستاسو پوځونه منې موږ هېڅ نه وایو... » (۲۹).

افغانستان روسان بیا هم د دوستۍ تړون ته په بېلا بېلو لیکونو کې متوجه کړل او د افغانستان د اشغال شوېو سیمو او د بخارا د آزادۍ په باب یې توضیحات وغوښتل او په دې باب ټردېر اصرار وړوسته روسي سفیر ولیکل : «د سرحدي ځغې سیمې موضوع چې په تېرپېړۍ کې د افغانستان وه ، د تړون له مخې یې زموږ حکومت افغانستان ته سپارونکی دی ، دېرژر به یوې قطعي نتیجې ته ورسېږي او د خیوې او بخارا د خپلواکۍ د دړناوي په برخه کې باید ووایم چې د هغه تړون له مخې چې له افغانستان سره شوی زموږ دولت د خیوې او بخارا آزادۍ ته په درنښت ګوري خو په بخارا کې زموږ د دولت د لښکرو موجودیت د بخارا د حکومت د غوښتنې له مخې دی نو دا داسې مسأله ده چې هر وخت د بخارا حکومت وغواړي په بخارا کې به روسي یو عسکر هم پاتې نه شي او په هېڅ ډول دا مرسته د بخارا د خپلواکۍ په مخالفت مداخله نه ده ... » (۳۰) .

د افغانستان حکومت د بخارا له مسلمان ملت سره مرسته خپله اسلامي ، ایماني او وجداني دنده بلله نو ځکه یې په پټه او ښکاره او د روسانو له تهدیدونو او تعزیرونو سره د دوی مرسته کوله او د روس د نوې ښکېلاک له استعماري اهدافو سره یې مقابلې ته ملا تړلې وه.

د افغانستان حکومت د افغانستان د استقلال د ځګرې په ترڅ کې چې کوم هیأت اروپا او امریکا ته د محمد ولي خان په مشرۍ لېږلی و ، د اهیأت ترېتولو وړاندې د بخارا پاچا ته ورغی او د اعلیحضرت -

امان الله خان له خوا ورلیږل شوي تحفې یې ورته ورانسدي کړې او بیا امان الله خان له بخارا سره د دوستۍ د ټینګښت له پاره د بخارا پاچا ته د جګړن احمد خان په مشرۍ دوه سوه تنه وسله وال عسکر د موزیک له ټولۍ او له اوو توپونو او دوو پیلانو سره د کومک په ډول ورولیږل (۳۱).

د افغانستان او بخارا دوستي روسانو په ډېره ویره شارله، حتی یو ځل له روسانو سره ویره پیدا شوه چې افغانستان او بخارا پر تاشکند ګډه حمله کول غواړي نو ځکه د روسانو تشویش نور هم زیات شو. د ۱۹۲۰ ع کال په جنوري کې بخارا یوه قونسلګري په مزارشریف کې پرانستله او افغانستان په بخارا کې دایمي سفارت جوړکړ د ۱۹۲۰ کال په اپریل کې تاشکند ته رپوټ راځي چې سید عالم جان د بخارا امیر یونیم زر افغانان استخدام کړي چې له روس سره د جنګ له پاره د ده عسکر وروزي ... (۳۲).

د بخارا تر ماتې وروسته افغانستان ده او د ده ملګرو ته د اسلامي وروري په بنا پناه ورکړه او له سرحد نه تر کابل پورې د یوه معزز میلمه په توګه د توپونو په سلامي سره استقبال شو (۳۳) په کابل کې یې له امان الله خان سره وکتل او هغه په یوه وینا کې افغانستان د ده خپل وطن وباله او هرکلی یې ورته وواییه (۳۴). د بخارا د پاچا له سقوط سره هم د افغانانو مرسته غلې نه شوه، د بخارا مجاهدینو او آزادي غوښتونکو په بخارا کې له افغاني سفیر سره مکاتبه او مفاهمه وکړه او افغان سفیر د دوستۍ د یوه تړون د کولو په شرط له دوی سره د

[ ١ ]

# د هند نیولو له پاره د افغانستان لاندې کولو نقشه

د تزاري روسيې د وحشي امپرياليزم د ملک نيونې او هيواد پراخونې لومړنۍ هڅې په شپاړسمه ميلادي پيړۍ کې پيل شوې، په اروپا کې يې فتوحات وکړل او په اولسمه پيړۍ کې يې د آسيا او ختيځ په لور مخ وکړ او آمو ته يې ځان راورساوه. روسي شکيلاک هرې خواته لاس غزونې وکړې او له مسکو نه يې ټولو خواوو ته دا د «گام په گام وړاندې تگ» پلانونه تنظيم کړل (١).

د اتلسمې پيړۍ په وروستۍ لسيزه کې انگريزانو د لوی هندوستان ډېرې برخې لاندې کړې وې. د نولسمې پيړۍ له پيل سره په ١٨٠٣ع کال انگريزانو د هند پلازمېنې ډيلي او آگره نيولي وو او يو کال وروسته يې د هند وروستني ملي مقاوم ځواکونه چې د «هولکر» په مشرۍ يې مقابله کوله، له منځه يوړل او پر هند يې بشپړ تسلط وموند (٢).

پر هند باندې د انگريز سلطې دې طلايي مرغۍ ته د وخت دوه

کومک وعده وکړه او د وخت حکومت د همدې تماسونو په رڼا کې د بخارا د خلکو د تنویر په خاطر په مزار شریف او خان آباد کې د «اتحاد اسلام» او «اصلاح» په نومونو جریدې خپرې کړې (۳۵) چې د ملي ارزښتونو او اسلامي وروری او یووالی په برخه کې یې خپروني کولې (۳۶).

افغانستان په همدې دول له یوې خوا له روس سره د مفاهمې له لارې له بخارانه د روسي عسکرو ایستل غوښتل او له بلې خوا یې محض د بخارا د آزادۍ په خاطر خپل نه پخولا کېدونکي دښمن انګریز ته اجازه ورکوله چې د افغانستان له لارې د بخارا مجاهدینو ته وسله او مهمات ورسوي خوا انګریزانو له روس سره د تجارتي تړون د ساتلو له امله دې کار ته زړه نه ښه کاوه (۳۷).

د بخارا د اولس او مجاهدینو سره د افغانستان اخلاقي او عملي مرسته دومره مشهوده وه چې د روسیې د غضب، شکایت او حتی اقتصادي تعزیراتو او د وعده شوو مهماتو د ځنډولو سبب شوه او روسي سفیر خصوصاً افغانستان ته د نظامي منل شوو لوازمو نه سپارلو دلیل داسې وښود: «زموږ او ستاسو د سیاسي مناسباتو د ارزښتونو په خلاف د روسیې او افغانستان او د بخارا او افغانستان پر سرحد ونو باندې د افغاني عسکرو ځای په ځای کېدل او هم د روسیې او بخارایي عسکرو په مقابل کې د افغانانو برخه اخیستل او په همدې وخت په بخارا کې د افغاني سفیر غیر د وستانه اقدامات چې غوښتل یې د بخارا حکومت له روسیې سره د ښمن کړي زموږ د

خواشيني سبب شول او ځکه زموږ حکومت د وعده شوو مهماتو د راسپارلو ځنډول خوښه دې برخه کې د افغانستان له خوا نه راډېر ځواب تر لاسه شوی نه وي د امهمات به ځای په ځای وي (۳۸).

همدارازد روسيې سفير د افغانستان د خارجه چارو د وزارت په نوم په يو رسمي ليک کې وليکل:

«زما د حکومت د شفري فوري پيغام له لارې ما ته معلومه شوه چې په بخارا کې د شوروي پلټنو په نتيجه کې لاندينۍ خبرې په پوره ډول تثبيت شوې:

۱- د افغاني نماينده عبدالشکورخان له خوا په بخارا کې د روسانو پر ضد د ټولو پروپاګنډو سرپرستي.

۲- بخارايي اردو ته د افغانانو له خوا تعليم ورکونه.

۳- په بخارا کې د افغاني ټوپکيوال تولېدنه او د واقعاتو په وخت کې تر ټولو زيات په فعالانه توګه د دوی جنګېدنه.

۴- بخارا ته له افغانستان څخه د وسلو رسونه او د همدې هدف له پاره په ترکستان کې د افغانانو له خوا د وسلو پراخ رانيونه.

۵- په ترکستان کې د افغانانو له خوا د شوروي پر ضد پراخ پروپاګنډه.

۶- په فرغانه او د بخارا په ختيځو خانيو کې «باسمه چيانو» (مجاهدين) ته نه قطع کېدونکې مرسته ورکونه.

۷- په چارجوی او د کشک د محاذ په عقبي برخې باندې په حمله کې د افغانانو ګډون.

زموږ حکومت په خواشینۍ سره دغه ټولې خواشینونکې پېښې یا دوې ... (٣٩) .

همدا اوچې د روس د تعزیراتو او سیاسي فشار له مخې او د انګلستان له خوا د پښتوانې نه لرلو له امله د افغانستان حکومت د بخارا د مجاهدینو له عملي مرستې څخه لاس واخیست (٤٠) .

PROPERTY OF ACKU 289

## [٦]

# په افغانستان کې د روسانو جاسوسي فعالیتونه

پر بخارا باندې د روسانو تر تېري وروسته افغانستان هم د روس استعماري اهدافو ته متوجه شوی و او روسانو هم د روس د توسعه جویۍ په برخه کې د افغانستان نیت څرګند شوی و ، افغانستان د شرق او غرب د استعمار په مقابل کې د مسلمانانو دیوالي ځنځیر کولو او روس ته د اکار د زغم وړ نه و ، روسانو د پان اسلامیزم پر مفکوره د انګریزانو د تحریک تر څنګ په وهله او مسلمانانو د خپلې بقا ضرورت ګاڼه .

د افغانستان لویې جرګې چې د ۱۳۰۳ کال د چونګاښ په ۲۸ مه نېټه په پغمان کې جوړه شوې وه ، اصرار کاوه چې اسلامي خلافت دې بېرته را ژوندی او مرکزیې دې افغانستان وټاکل شي (۱٤).

دې موضوع له روسانو سره زیات تشویش پیدا کړی و او داسې وخت چې جرګې په کابل کې دوام درلود ، د آقابکف په مشرۍ یې

کابل ته یو جاسوسی هیئت په ډیپلوماتیکه جامه کې راواستاوه او د جرګې جریانات یې د یو هندي مهاجر «راجه مهندر پرتاب» په وسیله ځان ته معلومول (٤٢).

په دې وسیله روسانو په افغانستان کې یوه فعاله جاسوسي ځاله جوړه کړه چې د بېرته ژر یې په کابل کې هم عمال پیدا کړل او په برتانوي هند کې یې د جاسوسي فعالیتونو له پاره لاره وکړه او جاسوسان یې ورواستول (٤٣). د بخارا له لارې یې هم ځیني مشکوک او مشبوه کسان افغانستان ته راولېږل چې وخت په وخت لیدل کېدل او ځو کسان یې د حضور کوتوالۍ تر تحقیق لاندې ونیول (٤٤)، او همدا وو چې روسانو په افغانستان کې خپل اساسي تېرې چې د جاسوسۍ جال خورول وو، پیل کړ.

تر دې وروسته د روسانو ټولې معاهدې او تړونونه د دوی په ډېر شمېر استعماري اهدافو ولاړ او په هر قدم کې یې لومې او دامونه خواره وو.

روسي د اعلیحضرت امان الله خان په دوره کې پر افغانستان الوتکې وپلورلې او نه دې لارې یې زموږ د هوابازۍ شبکه په خپل لاس کې ونیوله، افغاني ځوانان یې د هوابازۍ د زده کړې له پاره تر روزنې لاندې ونیول او خپلې الوتکې یې افغانستان ته تسلیم کړې، په دې توګه یې زموږ د عسکري مهمه برخه اشغال کړه او یقیناً چې د روس استعماري سترګو به د خپلو الوتکو په لومړي پرواز کې د یوې داسې ورځې ننداره کوله چې دا الوتکې به د افغانستان په اشغال کې برخه اخلي لکه د ۱۳۵۷ کال د ثور په اوومه نېټه چې

همداسې وشول او هم د هوابازۍ لومړۍ ډله ځوانان دوې دخپلې آینده پې له پاره روزلې وو چې د نمونې په توګه له دې ځوانانو نه یو تن چې محمد صدیق طرزي یا نومېده، یا دولای شو چې شپېته کاله وروسته په سپینه ږیره په کابل کې د کابل ولایت د پلار وطنې جبهې (؟) رئیس و. همدا زموږ په هوابازۍ کې د روس لاس وهنه د دې سبب شوه چې انګرېزان زموږ پولوته نژدې د طیاره شکن توپونو په نصبولو لاس پورې کړې او افغانستان تر تهدید لاندې ونیسي (٤٥).

په ۱۹۲۵ ع کال کې روسانو د دوستۍ له ټولو وعدو او تړونونو سره - سره د افغانستان پرېوه سرحدي جزیره « درقد » باندې وسله وال برید وکړ او جزیره یې د روس له خاورې سره وتړله ، روسانو چې جزیره د شپې لاندې کړې وه دوړځې یې داسې آوازه واچوله چې د جزیرې خلکو قیام وکړ او په خپله خوښه یې ځان له روسیې سره وتاړه (٤٦) خود افغانستان حکومت د افغانستان اولس ته د روس د اتجاوز اعلان کړ او روس ته یې اخطار ورکړ چې افغاني خاوره تخلیه کړي (٤٧). په همدې ارتباط افغاني عسکر و د عبدالوکیل خان نایب سالار په مشرۍ له روسانو سره وسله واله جګړه هم وکړه او د دوامدارې جګړې له پاره یې تیاری کوله (٤٨) د افغانستان د باندنیو چارو وزارت هم داوخت په دې فکر کې شو چې یوځل بیا د بخارا د آزادۍ په باره کې د افغانستان او روسیې د دوستۍ د تړون اتمه ماده تر دعوا لاندې ونیسي (٤٩) روسان د موضوع باریکۍ ته متوجه شول، جزیره یې ترڅو ورځو

اشغال وروسته تخليه کړه او دا لاندې کول يې د خپلو عسکرو سهوه وبلله او ويې ويل زموږ عسکرنه وو پوهيدلي چې دا د افغانستان خاوره ده (۵۰).

[ ۷ ]

# د بې طرفۍ تړون او د تجاوز هڅې

روسي تجاوزونو په بېلا بېلو بڼو دوام درلود، د دوستۍ په نامه يې فتنې او تر زوېرونه کول او د هند تو د اوبو ته د رسېدلو د استعماري ستراتېژۍ په لوري يې رنګارنګ ګامونه اخيستل او په دې منځ کې يې د افغانستان د ډاډ او اطمينان له پاره هم ځينې غولوونکي ګامونه پورته کول، روسانو د همدې حيلو په سلسله کې د ۱۹۲٦ کال د اګست په ۳۱ مه نېټه له افغانستان سره د بې طرفۍ تړون لاسليک کړ او د تجاوز نه کولو وعده يې ورکړه ( ۵۱ ).

د ۱۹۲۷ کال د اکتوبر په ۲٤ مه نېټه د روسيې حکومت د - افغانستان پاچا امير امان الله خان ته روسيې ته د مسافرت رسمي بلنه ورکړه خو کله چې نوموړی په ۱۹۲۸ کال کې رسماً مسکو ته ورسېد، د روسيې جاسوسي دستګاه "ګ. پ. او" تر څارنې لاندې ونيو حتی د ده ټول بکسونه يې په پټه کې تلاشي کړل او د ده په ټولو

خصوصي مجلسونوکې یې خدمتکاران د جاسوسي دستګاه غړي وو (۵۲).

په ۱۹۲۹ ع کال کې چې افغانستان د روس او انګریز د ګډو دسیسو په نتیجه کې له یوه کورنی اړدوړ او اغتشاش سره مخامخ شو، نو روسانو د امان الله خان د طرفدارۍ په پلمه غلام نبي خان څرخي له روسي وسله والو قواو سره د افغانستان شمالي برخو ته راولیږ، خو امان الله خان چې د او وخت لا په کندهار کې و له دې مداخلې سره مخالفت وکړ او غلام نبي خان ته یې وویل چې زه نه غواړم د پردو په مټو د خپل هیواد تخت ونیسم (۵۳) او له بلې خوا د سقوي روسانو ته د دې مداخلې له امله جدي التیماتوم ورکړ نو روسان مجبور شول په افغانستان کې له وسله والې مداخلې نه لاس واخلي (۵٤).

د ۱۹۳۱ کال د جون په ۲٤ مه نیټه یو ځل بیا د افغانستان او روسیې ترمنځ د بې طرفۍ او تجاوز نه کولو تړون په نوم ماده کې تصویب شو او افغانستان ته د تیري نه کولو ډاډ ورکړ شو (۵۵)

تر ۱۳۵٤ ع کال پورې چې له افغانستان سره د روس تجارتي او اقتصادي روابطو پراختیا وموندله روس یو ځل بیا د خپلو ورته پلانونو د تطبیق لړۍ پیل کړه، د ۱۳۳۲ کال په دلو کې یې افغانستان ته د دوو سیلوګانو د جوړولو په باره پور ورکړ او د دې سیلوګانو د جوړولو کار یې په غاړه واخیست (۵٦) دا هغه سیلوګانې دي چې پر افغانستان باندې د روسانو د تیري په وخت کې د عسکري قشلو د ارتیاوړ د ودې یکې پخېدلې او اوس هم د کابل رژیم د مزدورو عسکرو له پاره په دوه ډوله پخولو بوختې دي.

# [ ۸ ]

# د روس ایډیالوژیک تېری او دوره ثمره پروژې

د اریکوپه دې موده کې روسانو په ایډیالوژیک لحاظ هم په افغانستان کې کار کړی ؤ، د ویښو زلمیانو او نورو سیاسي ډلو په منځ کې یې خپل ایجنټان موندلي او ځای پر ځای کړي وو، د روس دوو رهسواکو ډاګیسنو تره کی او ببرک له هماغه وخته د سیاست ډګر ته را ودنګل.

په ۱۳۳٤ کال کې چې دافغانستان او پاکستان ترمنځ د پښتونستان پر موضوع چې روسیې خاص اهداف پکې درلودل، حالات تاوجن شول، روس دې اورته ببوزي وواهه ځوځې وکړای شول پر افغانستان باندې د نظامي تړون کولو منې او دافغانستان حکومت هم د لویې جرګې له لارې د دې نظامي تړون لاره هواره کړه، د روس زرې او سلې رانیولې شوې او افغاني منصبداران روسیې ته د زده کړې له پاره ولېږل شول او د روسیې مشرانو کابل ته مسافرتونه وکړل.

د دوستۍ په همدې تاوده تناره کې روسانو خپلې نورې استعماري دوړې

نور ښکېلاکي ځواکونه فرانسه او روسیه هم د رقابت په ډول راوپارول او وهڅېدل چې دوی هم د هند تر دواو بوټه ځانونه ورسوي. د روسيې امپراتور لومړی پاول له فرانسې نه وراندې شو او پر هند باندې د یرغل نقشه یې جوړه کړه او ځرنګه چې د روسيې لښکرو تېریدو لاره پر افغانستان⁽⁾ نو هم دې تېرو ته په زړا کې یې لومړی پر افغانستان او بیا پر هند باندې د تیري تیاري وکړا او هم داو وچې روسي امپراتور په ۱۸۰۱ ع کال کې خپل باوري جنرال الوف ته امر وکړ چې د اورنبورګ، بخارا او خیوې له لارې له دوه ویشت زره عسکرو او شلېر ویشت توپونو سره یرغل وکړي، خو جنرال لا اورنبرګ ته نه و رسېدلی چې امپراتور ووژل شو او دا نقشه هم د لته شنډه شوه.(۳)

کله چې په روسیه کې لومړی الکزاندر قدرت ته ورسېد نو د هند د نیولو په برخه کې د وخت د دوو استعماري ځواکونو . فرانسې او روسيې تر منځ مفاهمه وشوه او د هند لاندې کولو ته یې ګډ پروګرام جوړ کړ، د فرانسې ناپلیون بناپارت او د روسيې الکزاندر سره بحث وکړ او وچې پر هند به ګډ یرغل کوي او د اطلاعي مرغۍ به د انګریز د منګولو نه خلاصوي، دوا ړو پتېیلي وه چې د دوی ګډ او یا زرکسیز لښکر به په یخو میاشتو کې د ننه د «تونې» له سیند نه تر «توري بحیرې» او له «استرخان» نه د ایران تر «استرآباد» پورې رسېږي (٤).

د فرانسې او روسيې ښکېلاکګر ځواکونه باید د افغانستان له لارې هند ته ننوتلي وی، نو ناپلیون ځان مجبور کانه چې افغانستان ته خبر ورکړي او یو د ائتلاف هیأت ورته راواستوي خو د وخت ځواکمن

هم پخې کړې، د ترانزیت ترون یې لاسلیک کړ، اقتصادي اړیکې یې ټینګې کړل او همدا وخت یې د بې طرفۍ او تجاوز نه کولو قرارداد یو ځل بیا تمدید او تصویب کړ. د کال په پای کې یې افغانستان ته د یوه او بږده پور برابرولو لپاره لاسلیک کړ او د تخنیکي مرستو پل ترون یې وتاړه، د ۱۳۳۵ کال په پیل کې یې د هوایي سرویس د تاسیسولو موافقه وکړه (۵۷).

روسانو له دې طلایي موقع نه د افغانستان د راتلونکې نیولو له پاره دوه ثمره پروژې تر کار لاندې ونیولې ؛ د کندهار هرات د لوی سړک پخول د سالنګ د لویې لارې جوړول، د پولي تخنیک د پوهنځي اعمارول، کلتوري او فرهنګي ترونونه کول، د ننګرهار د کانال لویه پروژه جوړول او نور داسې اساسي کارونه کول چې د روسانو د اشغال له پاره یې تسهیلات رامنځ ته کول، په دې وخت کې ترسره شول، روسانو په افغانستان کې پخې پښې خښې کړې او د افغانستان پاچا او صدراعظم هم په هم دې وخت کې روسیې ته سفرونه وکړل او د روس د خوږو خبرو په دام کې ښکېل شول (۵۸).

روسانو له دې راشو د رشونه د خپلو شومو استعماري اهدافو له پاره په زړه پورې سکته او چته وکړه او ویې کړای شول چې د افغانستان دښمنو په ټولو ساحو کې رخنه وکړي او په بېلا بېلو برخو کې لاس ومومي. د هم دې دوستۍ له جال نه یې په افغانستان کې د خپلو ځېنتهانو د ښکارکولو او موندلو او په پښو ودرولو کار هم په بېړه او سرعت پیل کړ او په دې وسیله یې په افغانستان کې د خپل

ایډیالوژیک تیري زمینه برابره کړه (۵۹).

همغه روسي ښکېلاک د نړیوال ښکېلاک د وحشت پر مختلفو او بشپړ شوی شکل دی چې د نړیوال امپریالیزم له ټولو تاریخي تجربو او تاکتیکونو نه یې په یو ځای ډول استفاده کړې او د وحشت ټولې نمونې یې په خپل خونړي شکل کې جذب کړې دي. خو د خپل پرمختګ او منګولو خښولو تاکتیکونه یې د پرشمېرلي، غولوونکي او حتی کله ـ کله هېښ کوونکي او د ساده زړونو وړونکي دي.

د روس زاړه استعمار هم هڅه درلوده چې په خپلو لاندې کړو هېوادو کې د دوی د ځایي دین پرځای د برچې په زور عیسویت پرې ومني (۶۰) خو دا کار جبري، حتمي او اساسي نه و. لیکن کمونستو روسانو کمونیزم ته داسې رنګ ورکړ چې ګویا دا ټولې نړۍ د زیار کښانو د نجات لاره ده او په همدې منطق یې په ټوله دنیا کې خوروله خپل مسلم حق ګڼلي او له دې لارې خپل خونړي ښکېلاک ته علمي(؟) فلسفي(؟) پوښ ور اغوندي او په هېوادونو کې دا ایډیالوژیک تیری له لارې ځان ته پایګاوې جوړوي. په پیسو اخیستي اجیران روزي او بیا د دوی په وسیله او له دوی سره د مرستې په پلمه خپل نور استعماري کاموا او جېټوي او هېوادونه لاندې کوي. روسانو دا کار د افغانستان په برخه کې هم کړی دی او له لومړۍ ورځې څخه وو چې په افغانستان کې ایډیالوژیکه پایګاه پیدا کړي او د لته اجیران او ایجنټان په پیسو اخلي چې موږ دلته دا بحث د ایډیالوژیک تیري په سلسله کې لنډه تفصیل څېړو.

د روس کمونستي دولت له کلمه نه چې له افغانستان سره دوستانه روابط

پیل کړل داسې یې ځان ښود چې دوی ګویا پر افغانستان باندې د ایډیالوژیک تېری هیڅ خیال نه لري ځکه دوی پوهېدل چې د افغانستان مؤمن او مسلمان اولس د کمونیزم او الحاد سرسخت دښمن دی نو له همدې امله به یې تل په ښکاره داویل چې: «روسان په افغانستان کې د کمونیزم د خپرولو اراده نه لري» (۶۱) خو په پټه به یې تل هڅه کوله چې په څه ډول د افغانستان د ایمان په پولادي دېوال کې د کمونیزم د کرغېړن زنګ ودې ته ځای پیدا کړي، دوی په لومړۍ مرحله کې په افغانستان کې هیڅوک هم داسې ونه موندل چې په ککړه کې یې د کمونیزم ناولي میکروب تزریق کړي، په دې برخه کې یې لومړی له هغو هندي مبارزینو نه کار واخیست چې له انګرېزانو سره یې دښمني درلوده چې په نمونه کې یې «راجه مهندرا پرتاب» یادولای شو چې روسي جاسوسانو زموږ د ملي اسرارو د سپړلو له پاره مامور کړی و (۶۲).

په دې سربېره کله چې په ۱۹۲۰ ع کال د خلافت په سلسله کې له انګلیسي هند نه افغانستان ته مهاجرت وشو په دې مهاجرت کې هم ځینې ځوانان د روسانو په بلنه ترروسي پورې ورسېدل او هلته د کمونیزم تر ایډیالوژیک «کشش» لاندې راغلل (۶۳) او هم خان عبدالغفار خان او د ده ځینې ملګري چې په همدې سلسله کې کابل ته راغلي وو صوبه سرحد ته په راغبرګېدو سره یې «سرخپوش تحریک» په ۱۹۲۹ ع کال جوړ کړ (۶۴) چې په دې سره رنګ کې هم د روسي کمونیزم خونړي رنګ انعکاس کاوه او نن یې موږ وینو چې د سرخپوشانو او د

دوی د اخلافو سره بیرغونه د روس په طرفدارۍ کې رپول کیږي او حواریون یې په واز کومې د «سره سحر» غوښتنه کوي (٦٥).

د همداسې یو واقعیت په رڼا کې وو چې انجمن اصلاح الافاغنه خپله اصلاحي څېره په سیاسي رنګ کې رنګ کړه، ظاهراً یې د «خدايي خدمتګار» نوم ځان ته کښېښود خو عملاً یې سرکمونستي سرخپوشي رامنځ ته کړه او له مسکونه یې رنګ واخیست نو ځکه انګریزي انتلیجنت سرویس د دې ارتباط په باب مستند معلومات تر لاسه کړل او د هغې وخت انګریزي اخبارونو په واضح ټکو کې ولیکل چې: «سرخپوش په اصل کې بالشویک دي او د دوی سر دفتر ماسکو دی» (٦٦) او په دې ډول روسانو وکړای شول چې د افغانستان له لارې د کمونیزم ایډیالوژیک مزی په «هوا» کې برتانوي هند ته وغځوي.

همدا راز په اماني دوره کې روسي جاسوسان بریالي شول چې په افغانستان کې دننه له پاره ځاني جاسوسان هم پیدا کړي او هم ځینې داسې کسان وموي چې کمونیزم ته خوشبیني وښيي (٦٧) خو بیا هم بریالی نه شول داسې کسان چې له ایډیالوژیک اړخ نه کمونستان شوي وي، ومومي.

د نادرخان په دوره کې په ١٣٠٩ هـ ش کال (١٩٣٠ع) د هرات د «اتفاق اسلام» مدیر د طباعتي حروفو د پیرودنې له پاره تاشکند ته ولیږل شو چې یوه نیمه میاشت یې هلته تېره کړه او تر راستنېدو وروسته یې خوانان په ځان راټول کړل او کمونستي تبلیغات یې وړاندې پیل کړل او د همغه کال په میزان کې یې یوه رساله نشر کړه چې په هغې کې

دکمونستي حکومت خدمتونه او د بخارا د پاچا ظلمونه منعکس شوي وو.
د هرات دیني علماء او مسلمان خلک د نوموړي مدیر د دې عمل سخت
وپارول او د شپې یې په داسې حال کې لاره ورته ونیوله چې دی له
یوې میلمستیا نه له خپلو ملګرو سره راغبرګیده، د دوی د برید له
امله یې دوه ملګري مړه او مدیر د سخت تپ له اخیستلو سره د پېښې
له ځای ځخه وتښتېده، کله چې والي د ده کور ولټاوه څو
صندوقه کمونستي کتابونه تري راووتل، بیا کابل ته راوغوښتل
شو، دلته د «انیس» مدیر وټاکل شو خو کله یې چې اسناد د
وخت صدراعظم محمد هاشم خان ته یوړل شول د څو کلونو له
پاره یې زنداني کړ (۶۸).

روسانو د خپل ایډیالوژیک تېري له پاره له هر فرصت نه استفاده
کول غوښتل او خوري وریې هڅې یې کولې خو د ده له ایز نفوذ زمینه
د مسلطو استبدادي شرایطو له امله نه ورته پیدا کېدله.

لکه څرنګه چې د امیر عبدالرحمن خان تر استبدادي دورې
وروسته د «مشروطیت نهضت» راټوکېدلی و (۶۹)، همدا راز د محمد-
هاشم خان تر استبدادي واکدارۍ وروسته د «ویښ زلمیان» نهضت
رامنځته شو، په دې نهضت کې غیر متجانس کسان راټول شوي وو د
واقعي مبارزینو تر څنګ د دولت جواسیس هم پکې وو او د ملي
کسانو په خواکې د پردو اجیر او ایجنټ کسان هم ځای شوي وو (۷۰).
موږ د «ویښ زلمیان» په باب له اوږده بحث څخه تېرېږو خو دا
چې د روسانو لوی نوکر او ایجنټ نور محمد تره کی له همدې ستېج څخه له

سیاست سره اشنا شو دبحث ورموضوع بولو. محمدهاشم خان په ۱۳۲٤ هـ ش کال کې مستعفي شو (۷۱)، ویښ زلمیان په ۱۳۲۵ هـ ش کال کې غزونې کولې او په ۱۳۲٦ هـ ش کال کې عملاً رامیدان ته شو (۷۲) تره کي په ۱۳۲۷ کال کې له دې دلې سره مل شو او په ویښ زلمیان کې "پنګه وری" وروسپارله شوه، ده له یوې خوا د دې دلې پیسې - تحت الجیب کړې (۷۳) او له بله پلوه کله چې دا نهضت د داود خان په لاسو سره خوروور شو نو واقعي غړي یې زړه ټنيان شول او جواسیس او د دولت خدمتګاران یې ورنازول شول، له دې نسا بولیو څخه نور محمد تره کی هم و چې په امریکه کې دافغاني سفارت مطبوعاتي آتشه و ټاکل شو (۷٤) او کله چې خلقیانو د شوروي خونړي کودتا وروسته واک تر لاسه کړ نو د تره کی دا مقرری یې په "تبعید" تعبیر کړه (۷۵) هسې تره کی له ځایه یو مجهول الهویه سړی و، ویل کیږي چې دی دیوې قزاقي ښځې زوی و چې له مور سره یو ځای یې افغانستان ته راوستل شوی و او بیا د ابنځه په نظر محمد تره کی واده کړای شوه او په دې توګه ده خان ته تره کی روایه، د داسې مجهول الهویه توب ځرګند ده له هغې سوانح څخه هم لګیږي چې ده په خپله په دووبېلا بېلو وختونو کې لیکلې او خپره کړې ده. په ۱۳٤۰ کال کې یې "بېنوا" ته د "اوسني لیکوال" له پاره د ځان په باب داسې معلومات ورکړې:

"د ښاغلی تره کی اصلي تاټوبی د مقر د علاقې د ګلکی ناوې سورکلی دی خودی په خپله د ۱۲۹٦ هـ ش کال د میزان په ۲٤ په میمنه کې د یو لږ څه باسواده شپانه او بزګر په کورکې زیږیدلی دی" (۷٦) خو

کله چې بیاد خپل قدرت په وخت کې خپله بیوکرافي خپروي، هلته لیکي: چې نور محمد تره کی د مقرد ناوې په سر کلی کې زیږیدلی دی (۷۷).

دا دوه ژبی توب او په دوو ځایو کې او دوو نیټو باندې زیږیدل په خپله د ده د هویت مجهول توب ثابتوي.

ببرک لیکی: «په تېره بیا له ۱۳۲۹ کال را په دېخوا د ده د لیکلو په طرز او هدف کې څرګند تغییر راغلی دی» (۷۸) دا اقتباس ښيي چې تره کی له روسانو سره هم په همدې دوران کې ارتباطات ټینګ شوي او د کمونیزم جراثیمو یې په مغزو کې ژور ځای نیولی دی.

ببرک هم د ۱۹۳۰ کال په لسیزه کې د محصلینو د لومړني اتحادیې له لارې تبارز وکړ او د روسانو د توجه ور وګرځید. په دې توګه روسانو دوه زرخرید جاسوسان او اجنټان پیدا کړل او په روزلو او پالو یې کولو کې یې ټینګار وایست.

د ۱۳۳۰ د لسیزې په ځینو کلونو کې د نورو انفرادي خپرونو تر څنګه په پښتو تولنه او پوهنتون کې یوه ډله داسې کسان هم راپیدا شول چې کوم سیاسي تشکل او تشکیل یې نه لاره خو د کمونیزم او کمونستي الحاد د تبلیغ او ترویج له پاره یې په خپلو مقالو او مجالسو کې تبلیغ وکړ، ځوانان یې ګمراه کړل او د خپلو کمونستي وزمه مقالو د خپرولو له پاره یې له کابل مجلې د ستېج په حیث کار واخیست، دوی هغه کسان وو چې د کمونیزم په ظاهري ځلک او بلک غولیدلي وو، په نا آګاهانه ډول یې کمونیزم ته لاره هواروله او په مقابل کې به د روسانو

له خوا د سفارت پر مېلمستيا ګانو کې د وودکا په جامونو نازول کېدل او روسانو به تشويقول او په شا ټپول خود کمونيزم په عملي راتګ سره دوی هم خواره واره شول (۷۹).

روسانو په دې لسيزه کې د افغانستان له دولت او حکومت سره د پرځان لند کړی وُ او د تجارتي ، فرهنګي او نظامي تړونونو له لارې يې دافغانستان په هره ساحه کې ځان ځای کړی وُ (۸۰) او له همدې ځای ځايونو شخړې راز - راز اجنټان هم ځان ته پيدا کول او ايډيالوژيکه رخنه يې کوله .

د ۱۳٤۰ ه ش په لسيزه کې دافغانستان د واکمنې کورنۍ کورنيو شخړو حاده بڼه غوره کړه او په نتيجه کې يې سردار داوُد خان مجبور شو چې له صدارت نه استعفی وکړي . له دې استعفی سره د قدرت هغه وېش چې د نادرخان په وخت کې د دوو ډلو نا سکه ورونو ترمنځ شوی وُ ، له منځه ولاړ . دا وېش داسې وُ چې دولت (سلطنت) (۸۱) به د نادر له کورنۍ سره وي (په دې ډله کې محمد نادر ، شاه ولی او - شاه محمود د درې سکه ورونه وو ) او حکومت (صدارت) (۸۲) به د هاشم خان له کورنۍ سره وي (چې په دې ډله کې محمد هاشم خان او محمد عزيز دوه سکه ورونه وو ) يوځل د محمد هاشم خان تر استعفی وروسته د شاه محمود صدر اعظم کېدلو داوُد در دولی وُ او دا ځل پر نورو عواملو سربېره د شاه ولي خان د زوی سردار عبدالولی خان رقابت هم د محمد داوُد خان په ګوښه کولو کې رول درلود .

موږ دلته د واکمنې کورنۍ ، کورنۍ شخړې او مخالفتونه څېړل

نه غوارو او داهم نه سپینو وچې داوُدخان په خپله له صدارت نه استعفیٰ وکړه او که ظاهرشاه مستعفی کړ (۸۳) خو د داوُدخان په له منځه تګ سره دافغانستان «دولت» مجبورشو چې په واک کې ظاهراً نورملت ته هم برخه ورکړي او غیرخانداني «حکومت» رامنځ ته کړي.

د دولت دې نوي بدلون د دربې کونو قوو د انفکاک او خلکو ته د اساسي حقوقو دورکولو ایجاب کاوه او په دې اساسي حقوقو کې داحزابو آزادي او د مطبوعاتو آزادي هم وه چې دافغانستان په نوي اساسي قانون کې دا آزادي تضمین او تأمین شوې وې او داحزابو او مطبوعاتو آزادي دوې تفره بېلې مادې پکې درلودې (۸٤) خو دا دواړې آزادي یې دخانګړیو قوانینو تابع وګڼلې، دمطبوعاتو قانون تسوید، تصویب او په ۱۳۴۴ کال کې نافذشو، داحزابو د قانون مسوده داولسي جرګې او مشرانو جرګې له مجلسونو نه تېره شوه خو د اساسي قانون دلسیزې ترپایه پورې دا قانون تصویب او نافذ نه شو او دشاهي رژیم ترسقوط پورې دپاچا دتوشیح په انتظار وُ (۸۵).

روسان چې د فرصت په انتظار وُ او له لږ فرصت نه یې ډېره استفاده کوله، له دې طلایي فرصت نه یې دخپل ښکاره ایدیالوژیک تېري له پاره ډېره لویه استفاده وکړه او سره له دې چې داحزابو قانون لانه وُ قانوني شوی خو د اساسي قانون د احزابو د آزادۍ له مادې نه یې په استفادې سره خپل پټ روزلي ایجنتان را میدان ته کړل.

٭٭٭

## [۹]

# په افغانستان کې ښکاره کمونستي فعالیت او دخلق دنامشروع ګوند زیږیدل

د ۱۳۴۳ کال دمرغومي په ۱۱ / د ۱۹۶۵ ع کال دجنوري په لومړۍ نیټه (۸۶) دافغانستان کمونست ګوند یاد کمونستانو په اصطلاح "د خلق دیموکراتیک ګوند" چې روسانو په پټه له ډېرځوانه کسان ورته روزلي وو، د روسانو د ما دي او معنوي ملاتړ او په دولت کې د روسانو د ژورنفوذ له امله داساسي قانون دوعدې په پلمه او دګوندونو د قانون د قانوني خلاء په ترڅ کې په غیرقانوني او ناروا توګه رامنځ ته شو او په دې توګه په افغانستان کې دکمونیزم "حرامي" ګوند سترګې وغړولې.

د دې ګوند د وړکوند لومړنۍ پیژندل شوې څیرې دا ۱۶ کسان وو: نور محمد تره کی، ببرک کارمل، اناهیتا راتب زاد، دستګیر پنجشېري، شرعي جوزجاني، کریم میثاق، سلیمان لایق، بارق شفیعي، سلطان علی کشتمند، طاهر بدخشي، ظاهر افق، داکترزرغون، میراکبر خیبر، نوراحمد نور او ځینې نور چې یوه برخه یې مؤسسین او ځینې نور

واکمن زمانشاه دراني د فرانسي داغوښتنه رد ه کړه او په خپله د هند د مظلوم ملت او مخصوصاً د مسلمانانو د نجات په لټه کې شو (۵).

روسانو چي د هیڅ دول قوانینو، دیپلوماسۍ او نړیوالو راشو د رشو د آدابو پابند نه دي، پر هند باندې د برید له پاره بیا تیارۍ وکړه او بې له دې چې افغانستان ته خبر ورکړي لومړی الکزاندر داسې نقشه جوړه کړه چې د فرانسې او استریا له قواو سره یو ځای خپل پنځه ویشت زره عسکر په هند ور مارش کړي او دا قواوې د استرآباد، هرات او کندهار له لارې هند ته ورننباسي. دا نقشه هم عملي نه شوه خو د روسانو استعماري مغز تل د دې طلایي مرغۍ د ترلاسه کولو فکر مصروف ساته او څه وخت وروسته یو ځل بیا ځاچف نوې نظریه تهینګه کړه او هغه دا چې یو قول اردو دې له استرابادځخه و لارشي او هرات دې ونیسي او دیرش زره عسکر دې له کندهار څخه د ډېره اسماعیلخان په لاره په لاهور ورننوځي، خورلیف هم دې ته ورته نقشه جوړه کړه، وروسي سکوبی لیف هم د افغانستان دلاندې کولو او هند ته د ننوتلو طرح وکړه خو دا ټولې طرحې د فرضیو په توګه پاتې شوې (۶).

❤❤
❤❤
❤❤

ورو- ورو او وار په وار په دې اثر ورکړه شوی وو.

کمونستانو د مطبوعاتو له قانون نه په استفادې سره د خپلو کمونستي افکارو او ګوندي اهدافو د خپرولو له پاره د «خلق» په نامه د یوې جریدې امتیاز ترلاسه کړ او د ۱۳٤٥ کال د وري په ۲۲ مه نیټه یې د دې جریدې لومړی او دوهمه ګڼه یو ځای خپره کړه او د خپل کمونستي ګوند تشکلات یې پکې نشر کړه، لکه څنګه چې د کمونستانو عادت دی د غولونکو او په عین حال ملفوفو الفاظو په ترڅ کې یې خپل کمونستي اهداف او خپله روس مزدوري په مفصل ډول پکې تشریح کړي وو، په لسهاوو زره نسخې یې چاپ کړې وې او د ښار په ښار بېلو بېلو برخو کې یې په خاص نظم وېشلې او یوه نسخه یې په دوې افغانۍ ورکوله، د مرام ماهرانه ترتیب او د وېش خاص نظم له وراېه ښودله چې دا په دې ګوند کې د څو راټولو شویو بد اخلاقه او په ټولنه کې منفورو او نالایقو کمونستانو کار نه دی بلکه تر شا یې یو مجرب قوت ولاړ دی خو ټولو په تعجب او حیرت کتل او هېڅ قانوني مرجع د دې بې قانونه ګوند او مرام مخه نه نیوله، کمونستانو هم جدي شول او د خپلې جریدې په راتلونکو ګڼو کې یې خپلې خبرې نورې هم را لوڅې کړې او د دیني مقدساتو او ملي اساساتو تخریب یې پیل کړ، د دې جریدې خپرېدلو د افغانستان مسلمان او هېواد پال خلک سخت وېرول خو دولت بیا هم مرعوب او غلی و، په دې منځ کې زموږ سپین ږیرو «د مشرانو جرګې» غږ و سکوت مات کړ، د خپلې رسمي پرېکړې له مخې یې دا جریده د افغانستان د دین او فرهنګ ضد وبلله او له حکومت نه یې ټینګ ټرزه

د دې روسي استعمار د ژبې بندېدل وغوښتل، حکومت مجبور شو چې د دې منحرفې جريدې د خپرېدو مخه ونيسي او «مشرانو جرګې» په دې جرأتمندانه اقدام سره د «خلق» د شپږمې ګڼې تر خپرېدو وروسته د دې ناولې جريدې خوله وربنده کړه، سره له دې چې کمونستانو د خپل تاکتيک په بنا په شپږمه ګڼه کې «توبه نامه» نشر کړه او ځانونه يې په يوه له زاريو ډکه مقاله کې د «اسلام، اساسي قانون او مشروطه شاهي» منونکي وښودل (۸۷).

د مطبوعاتو د قانون په ساحه کې د کمونستانو شکاره مطبوعاتي فعاليت بند شو خو په نورو ساحو کې يې رخنې وکړې. د وی د مطبوعاتو پر آزادۍ سربېره د اساسي قانون د مظاهرو او اعتصابونو د آزادۍ له مادې نه هم تر حد زيات سوء استفاده وکړه (۸۸) څرنګه چې پر افغانستان باندې مسلط وغيرملي حکومتونو د هېواد ټولې چارې ويجاړې کړې او د هېواد ټول وګړي يې ځورولي او زېښلي وو نو کمونستانو وکړای شول چې له دې خلاء نه د خپل ځان له پاره زيات ګټه اوچته کړي، دوی محرومو او محکومو خلکو ته د «کور، کالي، ډوډۍ» خوله خوږوونکي شعارونه ورکول، کارګران يې د حقوق غوښتنې په پلمه مظاهرو او اعتصابونو ته رابلل او ځوانانو يې په ښوونځيو او پوهنځيو کې د مترقي ايډيالوژۍ او د خوارې کښونو د پلوۍ په نامه غولول او د خپل ناولي ګوند له پاره يې استخدامول او په دې توګه يې د هېواد په عرفاني او اقتصادي مؤسسو کې رخنه کوله (۸۹). په اولسي جرګه کې يې خپل غړي او ملاتړ کسان ځای په ځای کړي وو،

په پوهنتون او نورو تعلیمي مؤسسو کې یې د خپلو اجیرانو په وسیله یو شمېر ساده لوح ځوانان غولولي وو او د مظاهرو، میتنګونو او حتی د حکومت د رنړو د رای اخیستنې په مواقعو کې یې داولسي جرګې له تالارنه د «ببرک»، «اناهیتا»، «نور» او نورو پلویانو په خوله د راډیو افغانستان په څپو کې خپل کمونستي زهر خورول (۹۰) .

مزدور ګوند له یوې خوا د حکومتونو له تزلزل او له بلې خوا د افغانستان پر دولت باندې د روسانو له نفوذ څخه په استفادې سره تنفس کاوه او زمونږ د پاک زړو مسلمانو او په هیواد مینو افغانانو په پاکه اسلامي خاوره کې د کمونیزم د میکروبونو دودې له پاره په کار بوخت وو.

د «خلق» جریدې تر بندېدو وروسته د ۱۳٤٥ کال په دوهمه نیمایې کې ظاهراً د روس کمونست ګوند په منځ کې د رنړو رامنځ ته شول، دا ګوند د تره کي او ببرک په مشرۍ په دوو لویو برخو وویشل شو او همدا وخت طاهر بدخشي هم یوه ډلګۍ تر ې بېله کړه چې دا درې واړه ډلې د «خلق»، «پرچم» او «ستم ملي» په نومونو یادې شوې خو خلق او پرچم دواړو په خپله ځان ته د «خلق دیموکراتیک ګوند» نومونه اخیستل او په دې توګه هر یوه ځان اصیل خلقي باله (۹۱) .

د سیاسي بصیرت په رڼا کې دا سې برېښېده چې د کمونست ګوند دا د رنړو نه د روسانو له خوا په داسې غیر محسوس ډول اچول شوې وې چې په خپله دوی هم نه پرې پوهېدل. امپریالیزم

او ښکېلاک عادت لري چې په يوه اسا تکيه نه کوي ځکه د ورستېدلو او ماتېدلو امکان يې شته نو روس هم د دې درز اچونې له لارې د خپلو ښکېلاکي اهدافو له پاره له يوې خوا څو امساوې جوړې کړې او له بلې خوا يې له دې لارې څخه د خلقيانو د ښتوب او رقابت احساس پياوړی کړ څو يو تربل سره روښانه مخه وکړي ، د پښتو لنډۍ ده :

په چيلم دوې سکروټې کېښې ده
لکه دوې ښځې په سيالۍ خوله ورکوينه

نو روسانو هم په افغانستان کې د کمونيزم پرچم دوې سکروټې کېښودې او په سيالۍ يې ورسوبن په هواد کې د کمونيزم نغرې تود کړ ، دا وخت په دې ګوند کې ميراکبر خيبر او حفيظ الله امين هم شامل شوي وو چې دواړه يو له بله سره ورپېړ وران وو ، روسانو په غير مستقيم ډول دوی او د دې ډلو نورغړي سره ترقيب کړل او د دې زمينه يې برابره کړه چې رقابتونه يې حاد او نه ختو لا کېدونکي شي . په دې تجزيه کې د روسانو نور اهداف هم نغښتي وو او داد وېش ټوله داسې شوې وه چې يو وخت د نژادي او ژبنۍ تبعيض داوربلولو له پاره هم کارترې واخلي ، په « خلق » کې اکثريت پښتانه او په « پرچم » کې اکثريت دري ژبي راغونډ شوي وو ، د « ستم ملي » ډله په نژادي تبعيض ولاړه وه او دا ډله يې له هغو متعصبو دري ژبو نه جوړه کړې وه چې په افغانستان کې يې پښتانه د نورو قومونو دښمنان بلل او په لازم فرصت کې په افغانستان کې د قومي شخړو او جګړو

د اور بلولو د بنه «اورلګیت» په توګه کار ترې اخستل کېده.

«خلق» او «پرچم» دخپلې ودې اوبقاله پاره د دولت دحمایت لټه هم کوله او دا داسې وخت کېدای شوای چې ځانونه ورلنډه کړي او دولت ته وښيي چې دوی د دولت له پاره د کوم خطر بنه نه لري، تره کي او ببرک چې رفاقت يې درقابت بڼه غوره کړې وه هر يوه هڅه کوله چې د وخت پاچا ظاهرشاه ته ځانونه ورلنډ کړي او دا کار د غوره مالي له لارې ترسره کېدای شوای؛ تره کي په يولړ هغومراسمو کې چې ظاهرشاه له يوه سفرنه راغلی و( غالباً د روسيې له سفرنه) د پاچا لاسونه ورښکل کړل (٩٢) او ببرک هم په خپل وار په يوه پارلماني وينا کې ظاهرشاه په منطقه کې مترقي پاچا وګڼه او د دربار د وزارت له پاره يې د شاهي د آبرو په خاطر لويه بودجه ضروري وګڼله (٩٣).

د خلقيانو او پرچميانو اختلافونه دومره شرمېدلي او ډاګيز شول چې په آزادو مطبوعاتو کې يې يو په بل پسې اعلاميې صادرې کړې، دستګير پنجشېري چې په دې انشعاب کې له پرچم سره ملګری و په «پيام وجدان» کې يې په يوه مقاله کې وليکل چې: له موږ سره مؤثق اسناد موجود دي چې تره کی د «سی، آی، ای» جاسوس دی، خو همدا پنجشېری بيا په ١٣٤٨ کال کې له هادي کريم سره د انتخاباتي فعاليت په ترڅ کې د پنجشېر له انتخاباتي حوزې نه د «تخريب کار» په نامه دولت بندي کړ او په زندان کې بېرته له پرچم نه خلق ته ولاړ او استدلال يې کاوه چې ببرک د حکومت جاسوس

دی او دوی په داسې حال کې چې تر تعقیب لاندې وو د ده کور ته مشورې ته ورغلل چې څه وکړي ؟ خو ببرک په خوب کې د کور نیو چارو وزارت ته تلیفون وکړ او ورته وې ویل چې هادي کریم او پنجشیری له ما کره دي، پولیس راغلل او دوی دواړه یې د ببرک له کوره ونیول خو ببرک ورته ویلي وو چې ما تلیفون ځکه وکړ چې حکومت ونه وایي چې دوی ډارن دي او له تعقیب نه ځان پټوي (٩٤).

د خلق او پرچم مخالفت ورځ په ورځ مخ په حاد یدو و، داعتما دی د حکومت په دوره کې د ببرک ډلې د «پرچم» په نامه دیوې جریدې د خپرېدو اجازه نامه تر لاسه کړه او په همدې ارتباط داډله پرچمیان وبلل شول خو تره کي چې په بل نامه داخبار غوښتنه کړې وه اجازه ورنه کړه شوه او د اطلاعاتو او کلتور وزارت ورته ولیکل چې : ستا د خلق په نامه جریده مصادره شوې نو ځکه په دې یا بل نامه د جریدې امتیاز نشي در کول کېدای (٩٥). خلقیانو د دې تبعیض په استناد دعوه کوله چې پرچم حکومتي ګوند دی، اعتمادی هم د دیموکراسۍ د دورې تر ټولو صدراعظمانو نه له روس سره ښه پالله ، د همده په وخت کې په کابل کې د لېنین د زېږېدو سلمه کلیزه په لوړو مراسمو ولمانځله شوه او په جوړه شوې غونډه کې ده په خپله د لېنین په ستاینه کې یوه مقاله وویله او هم یې په ١٣٤٩ کال کې د «افغانستان او د لېنین یادونه» په نامه یو کتاب د اطلاعاتو او کلتور وزارت له خوا نشر کړ چې د دې غونډې پښتو او دري مقالې یې پکې خپرې کړې (٩٦) همدې صدراعظم د زده کوونکو د غونډو او مظاهرو

اوغیر دولتي جریدو دخپرونو په مقابل کې یوه تونده وینا وکړه ، په عمل کې یې د « کاروان » او « سبا » ورځپاڼې او د « افغان ملت » جریدې تر تعقیب او تحقیق لاندې ونیولې خو « پرچم » په خلاص متن فعالیت کاوه او دا آوازې یې تایید ولې چې نوموړی صدراعظم له روس سره تارلري او « پرچم » هم روس ته تر « خلق » نه کرانه بن ده (۹۷) .

په هرحال د روس دې نوکرانو دعلني فعالیت په درلودلو سره د روس ایډیالوژیک تیرې ته لارې هوارولې ، ببرکیانو د پرچم له لارې کمونستي ایډیالوژي خپروله او وخت په وخت یې په یوه او بله پلمه مظاهرې او مېتنګونه کول او خلقیانو په مظاهرو سربېره د « پیام وجدان » نومې جریدې یومخ په پیسو اخیستی و او خپل کمونستي تبلیغات به یې پکې کول ، په ۱۳٤۸ کال کې روسانو وکړای شول چې د یونسکو په نړیواله مؤسسه دا ومنې چې د لېنین د زېږېدلو سلمه کلیزه په نړیواله سویه ولمانځي . هم دا راز روسان له لومړۍ ورځې نه خارو وو چې له لږ و امکاناتو نه ډېره استفاده وکړي ، د لېنین په برخه کې یې هم له دې موقع نه داعظمی استفادې کولو په منظور خپل غلامان خلقیان او پرچمیان سره ترغیب کړل او قوماند یې ورکړه چې د لېنین په برخه کې پراخې خپرونې وکړي ، خلقیانو د « پیام وجدان » په اخیستل شوي مخ کې د لېنین د سوانح خپرول پیل کړل او پرچمیانو په خپل پرچم کې په دې باب ډېرې مقالې خپرې کړې چې پرچمي شاعر بارق شفیعي په خپل یوه شعر کې په لېنین علیه اللعنة

باندې درود ووایه او دې حرکت دافغانستان د مسلمان ملت دیني او عقیدوي احساسات سخت وپارول او د هیواد دیني علماوُ په کابل کې یوه لویه غونډه وکړه چې پوره ۴۳ ورځې یې دوام وکړ، د دې غونډو مرکز د کابل تاریخي جومات «پل خشتي» وُ خو د وخت حکومت د روسانو د فشار له امله داغونډې تر فشار لاندې راوستې او وحشیانه پولیسي حمله یې پرې وکړه او دې پېښې وښوده چې دافغانستان حکومت د روس تر ژور رعب لاندې وُ او د دې رعب له لارې روسانو خپلو کمونستو غلامانو ته د هر ډول ودې زمینه برابروله (۹۸).

دظاهرشاه دلس کلنې دیموکراسۍ په دوره کې روسانو خپل ایډیالوژیک تبري له پاره زیات کار وکړ او د دې تر څنګه یې خپل د کې. جي. بي غړي لکه شاه محمد دوست، ډاکتر محمود حبیبي، محمد خان جلالر او داسې نور د دولت په حساسو پوستونو کې ځای کړل او هم یې په روسیه کې روزل شوي منصبداران په عسکري کې فعال کړل څو په یوه نظامي کودتا کې فعاله ونډه واخلي.

# [۱۰]

# د محمد داؤد خان پر کودتا کې د کمونستانو وسله واله برخه

د شاهي کورنۍ ناراضه غړي سردار محمد داؤد خان د ظاهرشاه
د حکومت د نسکورولو لپاره د ۱۳۵۲ کال په کودتا کې په کمونستانو اساسي
تکیه وکړه، که څه هم د چونګابش د ۲۶ په کودتا کې خلقي بټیت رتبه
منصبدارانو فعال لاس درلود خو د کودتا تر کامیابېدو وروسته د
داؤد خان زیاته تکیه په پرچمیانو وه، په دولت کې یې مهمې څوکۍ
ورکړې او هم د دولت په رسمي چارو کې په غیر رسمي ډول پرچمیانو ته
ښه ونډه ورکړه شوې وه؛ ببرک، لایق او د پرچم ځینې نورو غړو چې
له دې چې رسماً تماکل شوي وې په مهمو چارو کې واکمنانه اکتونه
کول او د مامورینو په مقررېدو او تماکلو کې یې لاس ؤ؛ په دې سربېره
غلام جیلاني باختري، نعمت الله پژواک او فیض محمد (۹۹) د دوی فعال
وزیران وو. حتی داسې آوازه هم وه چې د محمد داؤد د جمهوریت د اعلانولو
لومړنۍ ورځ هم د ببرک او نورو پرچمیانو په مستقیمه مشوره برابره شوې
وه، د دې اوازې یو ملاتړ دا ښودل کېږي چې پرچمیانو به لګوتنیونې

استقبال کړه او يوه مترقي لاره يې وبلله او هم د دې وينا په هغه مسوده کې چې د محمد داؤدخان په قلم ليکل شوې او د افغانستان کالنۍ د ۱۳۵۲-۱۳۵۳ کال په ګڼه کې زينګوګراني شوې داسې نخښې شته چې د دې آوازې ملاتړ کوي، په دې وينا کې يو ځای راغلي : «من برای سعادت آينده وطن خود جز قايم ساختن يک ديموکراسي واقعي و معقول که اساس آن بر خدمت به اکثريت مردم افغانستان برقرار باشد راه ديگری سراغ نداشتم ونداريم»، د دې ليکنې په مسوده کې د خدمت تر کلمې وروسته ليکل شوي «خلق وطبقهٔ ...»، چې بيا بېرته کرښه پرې راکښل شوې (۱۰۰) او غالباً داسې به يې بشپړ وله: «خدمت خلق وطبقهٔ زحمتکش افغانستان» چې د اکمونستي ادبيات مصلحتاً په اکثريت مردم اړول شوی دی. همدا راز د محمد داؤدخان د «خطاب بمردم افغانستان» د تګلارې په باب هم چې د ۱۳۵۲ کال دوږی په لومړۍ نېټه له راديو افغانستان څخه بروډ کاست شوه (۱۰۱) هم همداسې آوازې خپرې وې.

د وخت په تېرېدو چې داؤدخان خپلې پښې ټينګې ليدې له پرچميانو نه يې وروـ وروځان راټولاوه او خصوصاً کله چې د ۱۳۵۵ کال په سلواغه کې لويه جرګه جوړه او د افغانستان نوی اساسي قانون يې تصويب کړ (۱۰۲) د دوی له نفوذ نه يې ځان خلاص کړی و، د قانون په مسوده کې يې د پرچميانو هغو وړانديزونو ته چې په يوه پنډه شبنامه کې وړاندې شوي وو (۱۰۳) ځای ورنه کړ او په جلال آباد کې يې يوې لويې غونډې ته په خطاب کې وارداتي ايډيالوژي (چې مطلب يې مارکسيزم و) وټکوله (۱۰٤)، د غربي او عربي مالکونه سفرونه وکړل، قرارداد ونه يې وکړل

[ ۲ ]

# د روسانو له خوا افغانستان له ستونځو سره مخامخ کول

دافغانستان نیول او په یوځلي د هند تود و اوبو ته د روسانو د رسېدلو هڅې چې عملاً ناکامي شوې یوځل بیا یې "د کام په کام پر مخ تګ" پالیسي غوره کړه، د دې پالیسۍ د کامیابېدلو له پاره یې داسي لارې غوره کړې بې له دې چې خپلې قواوې استهلاک کړي افغانستان د کورنیو ښخړو او دایران او بخارا د لمسونو له لارې کمزوری او بې له نظامي لګښته لاندې کړي؛ په افغانستان کې د واکمنې کورنۍ کورنیو ښخړو هم د هېواد حالات تاوجن کړي وو او د روس او انګرېز لاس وهنو هم په دې اور تېل وپاشل (۷).

په نتیجه کې احمد شاهي ستروالکي (امپراطوري) وره او تجزیه او د ده اولاده سره لاس او ګرېوان شوه، د زمانشاه تر ړندېدو او خلع کېدو وروسته په افغانستان کې سیاسي استقرار له منځه ولاړ او هېواد د خونړیو کورنیو جګړو ښکار شو؛ د کورنیو جنګونو دې اور ته انګلیس او روس یا مستقیماً یکی واهه او یا یې دافغانستان ګاونډیان ورته را لمسول؛ په همدې ارډور کې د سدوزو حکومت سقوط وکړ او د درانیو د مېل شاخ محمدزي کورنۍ رامنځ

او د روس له اړې نه یې د افغانستان د ایستلو هڅه پیل کړه خو روسانو یوازې د خلق او پرچم په جامه کې خپل جاسوسان نه وو ځای په ځای کړي بلکه په دې سربېره یې د کې جي . بي خاص غړي درلودل چې یو یې هم «جلالر» و او جلالر هم د تجارت د وزیر په توګه په ډېرو سفرونو کې له ده سره مل و او زیاتې خبرې د ده په وړاندې تر سره کېدې چې ده به هم په بیړه روسانو ته رسولې.

روسانو په ... چې داؤد خان نور له دوی نه سراخیستی نو ځکه په دې هڅه کې شول چې د ده د رانسکورولو لارې چارې ولټوي، د دې یوه لاره د روس د پېتوا ځېنټانو له خوا د دولت په کېډه کې تخریب او له منځه وړل و او بل کار یې د خپلو مزدورانو په وسیله د ده د حکومت رانسکورول . د حکومت د رانسکورولو کار په یوازې ځان نه د خلق پروس کې و او نه د پرچم نو روسان د دوی د یوځل بیا یو ځای کولو په لټه کې شول ، د دې کار د یالوک ظاهراً د خلق او پرچم له خوا د شبنامو په بڼه پیل شو ؛ خلقیانو او پرچمیانو سره له دې چې د هم دې داؤد خان په وخت کې یو تر بل پسې زهرجنې پټې خپرونې کړې وې، مثلاً خلقیانو په یوه پټه خپرونه کې چې د خلق د ګوند تاریخچه نوم یې ورکړی و پرچمیان یو - یو خاینین ، د دولت جاسوسان او د ګوند د ښمنان ګڼلي وو(۱۰۵) او پرچمیانو هم په همداسې یو نشریه کې چې ویل کېدل هندي ګمونستانو په هندوستان کې ورته چاپ کړې (۱۰۶) د خلق د ګوند د فرد - فرد خاینانه خبرې بربنډې کړې وې خو بیا هم د روس په امر دوی سره یو ځای کېدلو ته چمتو شول ، په دې باب به د خلق او پرچم د مرکزي

کميټو فيصلې په وړو- وړو پاڼو کې ټاپ کېدې او د ښاغلو په توګه به وېشل کېدې، د دې پاڼو شمېر به ډېره زياتوه چې په خلقيانو او پرچميانو سربېره نورو خلکو ته هم رسېدې او يوه عمومي ګنګوسه خپره شي چې خلق او پرچم سره يو ځای کېدونکي دي، په دې پاڼو کې به يوه له بل نه زيات امتيازات غوښتل او په يوه پاڼه کې د پرچميانو غوښتنه دا وه چې ببرک او تره کی دې د دوو سره مساوي رهبرانو په توګه ومنل شي خو خلقيانو په خپلو پاڼو کې دا غوښتنه رد وله څو په پای کې دې نتيجې ته ورسېدل چې تره کی دې د ګوند لومړی او ببرک يې دوهم شخص وي او په پای کې يې په يوه پاڼه کې د دواړو ډلو د يووالي اعلاميه نشر کړه او ګډه فعاليت يې پيل کړ (۱۰۷).

د خلق او پرچم ديو ځای کېدو په وخت کې ډېرې تودې آوازې داوې چې د دې د واړو ډلو د بيا يووالي لپاره اجمل خټک زيات هلې ځلې کړې وې او ښايي دا وظيفه به روسانو ورسپارلې وه، ځکه ده په دواړو ډلو کې نفوذ درلود (۱۰۸).

د داؤد خان په وخت کې چې د ده د ملي غورځنګ د نيم بند او خام ګوند نه پرته نور سياسي فعاليتونه بند وو، خلقيانو او پرچميانو د ۱۳۵۶ کال د وږي په نهمه نېټه د پښتونستان د جشن په پلمه يو ګډ جلوس را ويوست او په هغه غونډه کې چې د ملي غورځنګ غړي هم ورته راغلي وو ورګډ شول. په غونډه کې اجمل خټک رسمي وينا پيل کړه، دوی به ځای په ځای منظم شعارونه ورکول او منظمې چکچکې به يې

کولې چې په مقابل کې د داوُد خان وړوکې او طفلانه گوند نور هم وړته وړوکی شو او دغوندې تر خلاصېدو وروسته تره کی او ببرک دخپلو کمونستو ملگرو په مخه کې روان او په داسې حال کې چې منظم صفونه یې درلودل دخپلو کورونو په لوری ستانه شول او په دې توکه یې وکړای شول چې د محمد داوُد د یوگوندی حکومت په دوره کې خپل سیاسي موجودیت او سیاسي نمایش په ښه ډول وکړي ، د کمونستانو دې منظم حرکت او تبارز د هیواد سیاسي حلقې دیوې ژورو تشویش غیږې ته وسپارلې.

د یوه کال په اوږدو کې روسانو له خلقیانو او پرچمیانو سره په سره سینه کار وکړ ، داوُدخان ته مغرور او بې پروا ملگرې یې غیرمتجانس ، بې کفایته او بې خبره وو، روسانو له دې طلایي موقع نه اعظمي استفاده وکړه ، د حفیظ الله امین خاطرې څرگندوي چې خلقیانو څوڅوځلې په رسمي قطعوکې نظامي تمرینونه ترسره کړل او د کودتا کولو عملي تجربې یې وکړې خو دده چرېسي وزیر دفاع رسولي په دې هیڅ خبر هم نه شو (۱۰۹).

خلقیان او پرچمیان بیرته واحد گوند شو خو په دې منځ کې د پرچم د مهم غړي میراکبرخیبر او د خلق د مهم غړي حفیظ الله امین ترمنځ تضاد حل نه شو ، امین خیبر دولتي پولیس باله او خیبر امین د سی . آی . اې جاسوس . روسان ویرېدل چې که دا تضاد همداسې پاتې شي نو امکان شته چې په حساس وخت کې د خلق او پرچم اتحاد وران شي او روسان له دې وحدت نه خپل اصلي مطلب ترلاسه نه کړای

شي ، نو دوی فکر وکړ چې له امین نه څنګه کار واخلي او له خیبر نه بیا څنګه ؟ روسانو د خپلو سیاسي محاسباتو او تجربو په رڼا کې فیصله وکړه چې امین ظاهراً د نظامي کودتا د رهبرۍ له پاره وروزي (که څه هم په حقیقت کې د کودتا رهبري هم د روسانو په لاس کې وه) او خیبر د دې ډول کودتا کېدلو د پلمې له پاره قرباني کړي .

د ۱۳۵۷ کال د ورې د ۲۹ نېټې په سهار د کابل د دولتي مطبعې په څنګ کې د میر اکبر خیبر مړی وموندل شو چې بل ځای وژل شوی او دلته را ورل شوی و ، د خلق « واحد » ګوند دا پېښه داسې تعبیر کړه چې ګویا خیبر د دولت له خوا ترور شوی ، په سهار یې دیوې لویې مظاهرې په ترڅ کې د خیبر تابوت د جمهوري ارګ له مخې تېر او « شهدای صالحین » ته یې د ده ناولی مړی ورساوه ، هلته ترکي ، ببرک او نورو کمونستانو تونده وینا وې وکړې او داسې شعارونه ورکړل شول : « زنده باد نور محمد ترکی رهبر کبیر خلق ! » د داوُد خان جاسوسانو د مراسمو جریان ثبت کړی و ، خلقیانو د ورې په ۳۱ نېټه د شاه دوشمشیر په جومات کې د خیبر « پاتا » واخیسته او په راډیو افغانستان کې یې د پاتا اعلان په داسې ترتیب نشر کړ چې د ترکي (۱۱۰۱) ، ببرک ، لایق او څو تنو نورو خلقیانو نومونه یې واخیستل او له لیرې ښکارېده چې دا « فامیلي » اعلان نه بلکه « ګوندي » اعلان دی . د داوُد خان په وخت کې چې ټول سیاسي فعالیتونه بند وو دا لومړی ځل و چې یو تابوت د مظاهرې په شکل او یو پاتا د ګوند په بڼه

واخیستل شوه نو ځکه هم دخپلو په مراسمو او هم د «پاتا» په مراسمو کې ډېر سیل بینان هم ورغلي وو چې داګڼه ګوڼه له یوې خوا دولت ته هم یو قوت ښکاره شو او له بلې خوا روسانو هم حساب پرې وکړ چې اوس نو ځه کولای شي (۱۱۱).

د داوُد خان دولت دخیبر د خپلو او پاتاله مراسمو څخه د دخپلو جاسوسانو ترتیب کړې رپوټونه او تیپونه ترخېړنې او تجزیې لاندې ونیول او خصوصاً دا چې د داوُد خان په رهبرۍ کې تره کی ته رهبرویل شوی وُ او داسې نور شعارونه او اظهارات یې د قانون ضد تشخیص کړل ،خطر یې حس کړ او دخلقیانو په نیولو یې لاس پورې کړ. دغوایي په شپږم ما ښام راډیو افغانستان د اتو او اته نیمو بجو په عمومي خبرونو کې د نور محمد تره کی ،ببرک کارمل ، دستګیر پنجشېري او څو نورو کمونستانو د بندي کېدو خبر خپور کړاو زیاته یې کړه نورکمونستان چې قانونه یې پټ کړی لټه یې روانه ده (۱۱۲) . دافغانستان مسلمان او هېواد پال خلک د دې خبر په اورېدو ډېر خوښ شول او یو بل ته یې مبارکۍ ورکړې خو دولت په ځای د دې چې امنیتي تدابیر ونیسي په عسکري قشلو او نورو کې یې دخوښۍ مراسم پیل کړل او د دې خاینانو د نیولو په مناسبت یې دخوښیو اتڼونه کول، ویل کېږي چې د دې خوښیو کولو ورځ نديز هم داوُد خان ته هغو خلقیانو کړی وُ چې داوُد ته ورلنډ وو او ده دخلقیانو په ټولکه نه بلکه خپل باوري کسان بلل او دوی داکار ځکه کړی وُ چې په عسکري قشلو کې ګډوډي

بې پروايي او بې نظمي پيښه شي او دوی له دې فرصت نه استفاده وکړي او له دې بې نظمۍ نه په ګټه اخيستلو سره خپله خونړۍ کودتا پيل کړي.

[ ۱۱ ]

# د خلقیانو وسله واله وحشیانه او خونړۍ کودتا

د ۱۳۵۷ کال د غویي په اوومه نېټه د پنجشنبې په سهار کې د خلقیانو وحشیانه او خونړۍ کودتا پیل شوه، د څرخي پله له زغروره قواوو څخه اسلم وطنجار ټانکونه راوایستل او په زیاتو قشلو کې مسلمان او هېوادپال منصبداران او قوماندانان د خلقي مزدورانو له خوا شهیدان شول، روسانو د پرېا وحشیانه کودتا قومانده ورکړې وه، په منصبدارانو سربېره ملکي کمونستانو ته هم له څخوا نه د روس د سفارت له لارې وسلې وېشل شوې وې (۱۱۳) او په پوره وحشت سره یې د افغانانو شهیدانول پیل کړل. د بګرام له هوايي ډګر نه عبدالقادر الوتکې راوالوزولې په جمهوري ارګ، د خواجه رواش په هوايي ډګر او حیني قشلو یې بمبارۍ وکړې، د غرمې په ۱۲ بجو او ۱۵ دقیقو یې راډیو افغانستان ونیوله او عادي خپرونې یې بندې شوې (۱۱٤)، ماز یګر مهال په راډیو

کې بې له خبرونه ما رشونه پیل شول او د شپې په او وبجو یې د —
حفیظ الله امین ترانانس وروسته د عبدالقادر او وطنجار په وسیله
د یوه عسکري پاځون د بریالیتوب اعلامیه نشر کړه، خوجنګ
په شدت روان وُاو ارګ تر درنو بمبارۍ لاندې وُ، د ثور داتمې
شپې بمباري د پېر درنه او مهیبه وه او بیا وروسته متواتر واوزو-
وښوده چې دا بمباري د تاشکند له هوايي ډګرنه د رالوتلو روسي
الوتکو په وسیله تر سره شوې ده.

دغو پېښو داتمې نېټې ترغرمې پورې د دې غیرقانوني ګوند
له خوا ترسره شوې وحشیانه او خونړۍ نظامي کودتا چې د روسانو
پټ او ښکاره نظامي او مادي کومک ورسره وُ، ترسره شوه او په
دې یوه شواروز کې یې د یوې په یوه خوله خورې شوې احصایې
له مخې پنځلس زره افغانان شهیدان کړل او د دې شهیدانو په کسکریو داغیر
قانوني رژیم ټینګ شو (۱۱۵).

کمونستانو ته روسانو د پرله پسې او دوامدار وحشت قومانده
ورکړې وه او ورته ویلي یې وو که د وحشت له لارې په افغانستان کې خپل
رژیم ټینګ نه کړي نو د افغانستان خلک به د دوی د راتسکورولو
په وخت کې د کمونستانو یو تن هم ژوندی پرې نږدي نو ځکه کمونستانو
په دې پنځلس زره شهیدانو اکتفا ونه کړه او په خلاص مټ یې
د افغاني روښنفکرانو، دیني عالمانو، مخورو او با رسوخه کسانو په نیولو،
څورولو او شهیدانولو لاس پورې کړ او د هېواد په کوټ کوټ کې
یې د داسې کسانو د نیولو اقدام وکړ او په پراخه پیمانه یې د کورونو تلاشۍ

لوټمار او ډله ایزې وژنې پیل کړې (۱۱۶).

د ثور د خونړۍ کودتا له کېدو سره سم چې د خلق او پرچم له یووالي نه روسانو خپل هدف ترلاسه کړی و، یو ځل بیا یې ضرورت احساس کړ چې دا دواړه ګوندونه سره بېل او په دوو سره بېلو پړاوونو کې کار تری واخلي نو ځکه کله چې دغوایي په لسمه نېټه د کمونستانو لومړنۍ حکومت او کابینه جوړېدل د خلقیانو تول پکې درنه وه او روسانو قصداً غوښتې وو چې لومړی خلقیان رامنځ ته کړي، پرچمیان بل وخت ته وساتي او هم روسانو د امین په وجود کې د وحشت، انسان وژنې او بې رحمۍ خپاند استعداد درک کړی و او هم یې په نورو خلقیانو کې هم همداسې وحشیانه او غیرانساني استعدادونه لیدل نو ځکه په دې حکومت کې د خلقیانو برخه ډېره درنه او د پرچمیانو دالبرزه او بې اهمیته ښوکېږو کې وه، د دې وضعې ببرک او نورو پرچمیان خوابدي کړل او د حکومت په چارو کې یې له فعالې برخې اخیستلو څخه ډډه کوله، خلقیان د دې وضعې وپارول او له مهمو پرچمیانو نه یې د وزارتونو څوکۍ واخیستې؛ ببرک، نجیب، وکیل، اناهیتا، نور او نور یې په بېلا بېلو هېوادو کې سفیران وټاکل او بیا د ۱۳۵۷ کال په زمري کې د خلقیانو له خوا د پرچمیانو د یوې ناکامې کودتا کشفېدل اعلان شول او څرګنده یې کړه چې په دې کودتا کې کشتمند، محمد رفیع او نورو پرچمیانو لاس درلودل (۱۱۷)، په دې سرخ کې یې یو زیات شمیر پرچمیان بندیان کړل او پرچمي سفیرانو تر موقوفېدو وروسته د سفارتونو شتمنۍ چور کسرې او تر کې په یوه راډیو تسلو نړیوالې وینا کې له مربوطو هېوادونو څخه

وغوښتل چې دا د سفارتونو غله دوی ته وسپاري او هم د ۱۳۵۷ کال تر
ژمي پورې پرچمیان یو په بل پسې زندان ته اچول کېدل.

د خلقیانو متغلب، په زور ټینګ شوي او غیر قانوني رژیم په
نړیواله سطحه له دې کبله تجرید نه شو چې د نړۍ هېوادونو دا د -
افغانستان کورنۍ پېښه بلله خو بیا هم د هر اسلامي او نا پېیلي هېواد نه
له دې کبله چې د افغانستان اسلامي حیثیت او نا پېیلتوب د خلقیانو له
خوا تحدید او تهدید شوي وو، په تشویش کې وو.

په داخلي سطح وضع بالعکس وه، د افغانستان مسلمان او آزادی
دوست اولس د خلقیانو له منځ دو رژیم سره له هماغه لومړي ورځې مقابله
پیل کړه او مشروع یې ونه ګڼله. د ۱۳۵۷ کال د ثور په لسمه د رژیم د کمونستي
کابینې تر اعلانېدو وروسته ټول ملت په دې پوه شو چې دا تشه
نظامي کودتا نه وه بلکه د روس په ملاتړ کمونستانو قدرت تر لاسه
کړی دی. تر کودتا یوازې دوې شپې وروسته د غوبیې په نهمه
نېټه د پکتیا ولایت د زېړوک خلکو پرچمي علاقدار چې د داوود خان له دورې
ته هلته مقرر و اسلام ته د سپک کتلو په جرم وواژه او په دې توګه
د الومړي اولسي عکس العمل و چې کمونست رژیم په دریمه ورځ ورسره
مخامخ شو(۱۱۸) د لغمان ولایت د نورستان د اولسوالۍ خلکو د غوایي
په ۱۵ نېټه محلي حکومت د هغه له مرکز «ننګراجه» وشاړه او خلقي -
اولسوال یې له هماغه لومړي سره ونه مانه، خلقیانو د نورستان
اولسوالۍ ته د لغمان ولایت له مرکز سره نژدې «جلا وطنه اولسوالۍ»
جوړه کړه او عملاً د دې سیمې د خلکو له راضي کولو نه عاجزه شول(۱۱۹)

ته شوه او روسانو داوخت د دیپلوماسۍ له لارې خپل د «ګام په ګام پرمختګ» د سیاست پلي کولو ته زمینه مساعده کړه (۸).

کله چې روسانو له انګریزانو سره د مفاهمې له لارې په ایران کې رخنه وکړه نو بیا روسانو وغوښتل چې د ایران په نامه په افغانستان کې لاس وهنې وکړي، د ایران تر لاس لاندې واکمن یې وهڅول چې پر هرات یرغل وکړي او د کندهار واکمن یې تطمیع کړل چې هرات به له کندهار سره وتړل شي او ایران ته یې وویل چې هرات او کندهار دواړه به د ایران جزء شي. روسي ښکیلاګګر دولت پر دې سربېره هڅه وکړه چې د کابل واکمن د پېښور د بېرته تر لاسه کولو په وعده تر خپل نفوذ لاندې راولي او د افغانستان واکمن د افغانستان د تجزیې په لاره کې استعمال کړي. روسانو د خپل تفتین د عملي کولو له پاره د — «ویتکوویچ» په نامه یو روسي استاځی کندهار او کابل ته راواستاوه، دې استاځي د مرستې وعده ورکړه او هم یې د پېښور د بېرته تر لاسه کولو په برخه کې خپل ملاتړ وښود او په دې ارتباط یې د روسي زار یولیک هم امیر دوست محمد خان ته وړاندې کړ (۹).

افغانستان ته د روس د دې هیأت راتللو انګریزان شکمن کړل او د ۱۸۳۸ عیسوي کال د اکتوبر په ۲۰ نېټه یې د روس د بانډ نیو چارو له وزارت نه په دې باب پوښتنه وکړه خو هغوی ځان ناخبره واچاوه او ورته یې وویل چې ویتکوویچ د تجارتي چارو له پاره افغانستان ته تللی وُ، د انګریزانو په دې ځواب قناعت حاصل نه شو او په دې وویریدل چې مبادا افغانستان د روسانو ښکار نه شي نو ځکه یې پر افغانستان د یرغل له پاره تیاری وکړ او په دې وسیله روسانو انګریزان د افغانستان

دغوايي په ۲۳ نېټه د کونړ ولايت په غرنيو سيمو کې ساپي ځيني نورپښتانه او د دې ولايت نورستانيان راولاړ شول او پاڅون يې پيل کړ (۱۲۰) په همدې مياشت کې د پکتيا ځدرانو او ګوربزو هم خلقي رژيم ورپاڅه او پاڅون يې وکړ (۱۲۱) او بيا يو په بل پسې دغور، بدخشان، تخار، کندهار، هلمند، زابل، روزګان، کاپيسا، سمنګان، بلخ، جوزجان او فراه د ولايتونو په ځينې اولسواليو کې پاڅېدنې وشوې خو د همدې ۱۳۵۷ کال دکب په ۲۴ نېټه د هرات تاريخي پاڅون وشو چې خلقيانو په بشپړ وحشت او قساوت ۲۵ زره مسلمانان شهيدان کړل (۱۲۲).

د پاڅونونو د غلي کولو له پاره خلقيانو د خپل بادار په قوماندو او مدرنه وسله يې ساري جنايات وکړل، په کونړ کې يې دري زره کورونه لوټ، څاروي حلال او بيا يې محترقه مواد پرې وپاشل او اور يې ورته کړ، بنديانو ته يې په ډله ايزه توګه د بلډوزر په وسيله جوونه وکيندل او بيا يې مړي او نيم ژواندي تر خاورو لاندي کړل او دومره بې شمېره جنايات يې ترسره کړل چې انسانيت پرې شرمېږي، دوی فکر کاوه چې له دې لارې به پاڅون غلی کړي او خپل غيرقانوني او ناروا رژيم به په خلکو وتپي. خو له وحشته سره مقاومت هم پياوړی شو او د ۱۳۵۸ کال له پيله دوسره پاڅون ټول هېوادي شوی و، تردې چې د ۱۳۵۸ کال دغوايي په اوومه نېټه امين د خپل خونړي رژيم د يو کلن کېدو په مناسبت دارګ له مخې نه په يوه راډيو تلويزيوني وينا کې لکه د لېوني سپي غوندې له ډېرې غصې له خولې نه ځګ ونه

بادول او خلقیانو ته یې قوماندە ورکړه : « هر خلقي چې په هر ځای کې وي او داسې څوک وویني چې په فکر کې له خلقي دولت سره مخالفت وي ورته اجازه ده چې له منځه یې یوسي ! » او په داسې وحشیانه قوماندو خلقیانو ډېر کورونه وران او ډېر بې ګناه افغانان شهیدان کړل (۱۲۳).

قیام دخپل قوام ته ورسېده ، د ۱۳۵۸ کال په وري کې د بامیانو لوی پاڅون وشو (۱۲۴) د وري په ۳۱ نېټه د کونړ د کرالي د کلي قتل عام وشو چې د دې کلي ستر ټوټنو پورې نارینه او سپین ږیري یې لومړی په ډله ایز ډول د ماشیندارو تخښه کړل او بیا یې ژوندي او نیم ژواندي یې د بلډوزر په وسیله په دوو غوندیو کې یو ځای تر خاورو لاندې کړل (۱۲۵) همدې ماښام ته یعنی د غوایي په لومړۍ شپه د ننګرهار د فرقې نظامي پاڅون وشو چې د ننګرهار جنایتکار والي بهرام الدین او هغه روسي مشاورین یې چې په همدې سهار د دوی په قوماندە د کیرالي قتل عام شوی او د خپلو وحشیانه اعمالو په جزا ورسول او په سبا یې خلقي رژیم په ډېر وحشت سره کې شمېر منصبداران شهیدان کړل (۱۲۶) په همدې شپه د مزار شریف د ښرین عسکري قوا ورته قیام وکړ (۱۲۷) په همدې میاشت کې د باد غیس او فاریاب خلکو اسلامي پاڅون وکړ (۱۲۸) د غویي په ۱۹ نېټه د لوګر مسلمان خلک پاڅېدل ، حکومتي تأسیسات یې بند او خلقي مزدوران یې تر تیغ تېر کړل (۱۲۹)، د غبرګولي په شپږمه نېټه د غزني ولایت د جاغوري او لسوالی د خلقیانو له واکه نه آزاد ه شوه (۱۳۰) د غبرګولي په ۱۵ نېټه د وردګو ولایت د دایمیرداد علاقداری فتح شوه

اوغبرګولی په ۱٦ د وردګو ولایت دچک اولسوالي آزاده اوله دښمن نه يي دپارلس زره میله ۳۰۳ بور انګلیسي توپک چي وردګو ته سپي وروبښلی اوغوښتل يي چي وردګ له هزاره ورونو سره يي جګړي ته وهڅوي ضبط کړل (۱۳۱) اوبیا د همدې ولایت د سیدآباد اوجغتو اولسوالیو پاڅون وکړ (۱۳۲) اوهم د ننګرهار ولایت د حصارک، خوږیانو، پچیر او آګام خلک راوپاڅیدل (۱۳۳) خدرانو هم د دې کال له پیل سره یو سرتاسری پاڅون وکړ او د ګردیز خوست لویه لاره يي بنده کړه او په زرمله کې هم عملیات پیل شول (۱۳٤) د چونګاښ په دوهمه نېټه د کابل دچنداولو زرور پاڅون وشو (۱۳۵) همدا وخت د مولوي شفیع الله په مشرۍ د ده سبز اوخواجه رواش پاڅون سرسره شو (۱۳٦) دچونګاښ په اتمه نېټه دلغمان عمومي پاڅون پیل شو (۱۳۷) دچونګاښ په ۱۷ نېټه په پنجشېرکې دپاڅون بهیر روان شو (۱۳۸) په همدې ورځ دوردګو ولایت دحلریز پاڅون وشو (۱۳۹) دپکتیکا ولایت حُسیني اولسوالی پاڅېدلې (۱٤۰) دزابل ولایت دشینکی اولسوالي خلک راپاڅېدل (۱٤۱) او د کندهار دپنجوایي اوکرز او د هیلمند په حُسیني اولسوالیو کې په اسلامي خوښې اوجذبه زرور قیامونه وشول (۱٤۲) د زمرې په ۱٤ نېټه د کابل بالاحصار مسلمانو افسرانو پاڅون وکړ (۱٤۳) د زمرې په ۲۱ د ډګروال عبدالرؤف په مشرۍ د اسمار دغونډ پاڅون اوله اولس سره یو پیوستون وشو (۱٤٤) او همدا سې د هیواد په کوټ - کوټ کې لوی او واړه پاڅونونه رامنځ ته شول او په نتیجه کې دخلق او پرچم پرانشعاب سربېره دخلق په منځ کې هم

درنړ راغی (١٤٥).

د ورېږي په ٢٥ نېټه «وفادار شاګرد» امين خپل «خلاق رهبر» تره کی په سېې آبې سره وواژه او ټول واک يې په خپل لاس کې واخيست، د «قانونيت، مصئونيت او عدالت» د شعار په ورکولو اوله لسهاؤ زره وشهيد شوو بنديانو نه د دوولس زره شهيد شوو بنديانو دلست په رامنځ ته کولو سره غوښتل يې چې کلن وحشت او قساوت ټول بار د تره کي په غاړه واچوي او خلک ځان ته جلب کړي خو د افغانستان مېړني او مؤمن اولس چې په دين او وطن يې تېري شوي و د يې تغيير او بدلون نشواى قانع کولاى ځکه دوى له تره کي يا امين سره جهاد نه و پيل کړى بلکه دوى له کمونست ملحد او روسي رژيم سره خپل جهاد پيل کړى او خپل يې خون کړى و.

د امين له راتګ سره قيام نور هم غښتلى شو، د وسله وال جهاد لمنه تر پخوا نوره هم پراخه شوه او د هېواد تر ښيمايي زياته خاوره عملاً د کمونست غير قانوني رژيم له رسمي او حتى اسمي اداري نه هم ووته، مجاهدينو په لويو ښارونو او د رژيم په عسکري تأسيساتو بريدونه پيل کړل او رژيم دومره وارخطا شو چې هره شپه به يې د کابل خلکو ته په تلويزيون کې هدايات ورکول چې له بريد نه د بچ کېدلو له پاره کړکيو ته توري پردې واچوي، د کور څراغونه وژني او د وسله وال بريد په صورت کې امنيتي تدابير ونيسي (١٤٦).

## [۱۲]

# پر افغانستان باندې د روسانو نظامي برید تېری

په کابل کې د کمونیست رژیم وروستی سلګۍ وې او نړۍ وه چې د مجاهدینو د بریدونو په ترڅ کې رانسکورشي، روسان وارخطا شول او د یوه عجولانه پلان په جوړولو سره یې د ۱۳۵۸ کال د مرغومی په شپږمه نېټه پر افغانستان وسله وال تېری وکړ او د امین حکومت یې د ده په وژلو سره په خپله رانسکور کړ، دوی دومره تلولې وو چې خپل وسله وال تېری ته یې هېڅ توجیه او تعبیر نه درلود، فقط دومره یې وویل چې موږ د کابل د رژیم په بلنه له افغانستان نه د خارجي تېري د طرد له پاره راغلي یو. (۱۴۷) دوی دا راتګ له مزدور رژیم سره د ۱۳۵۷ کال د لیندۍ د ۱۴ نېټې د همکارۍ، دوستۍ او ښه ګاونډیتوب د تړون او د ملګرو ملتو د منشور له ۵۱ مادې سره سم ګاڼه (۱۴۸) له مزدور رژیم سره تړون هم کومه مشروعیت نه درلود ځکه د ملت نماینده نه و

او اولس له لومړي ورځې څخه رېټلي وُ، په جګړه ورسره بوخت وُ او عملاً يې د هېواد زياتې سيمې ترې آزادې کړې وې او د ملګرو ملتو د منشور د ٥١ مادې متن دادی چې:

«که د ملګرو ملتو په يوه غړي باندې وسله وال بريد وشي، نوموړی هېواد ذاتي حق لري چې د امنيت د شورى له خوا د بين المللي سولې او امنيت د ساتنې له پاره د لازمو تدابيرو ترنيولو وروسته له ځانه په ځانګړې يا دله ايزه توګه دفاع وکړي». (١٤٩).

چې دا ماده هم نه يوازې دا چې په دې برخه کې د تطبيق ور نه وه بلکه د همدې عمل پر ضد وه لکه روسانو چې کړې وُ، ځکه تر دې وړاندې پر افغانستان هېڅ بهرني هېواد بريد نه وُ کړی او دا روسيه وه چې د مرغومې په شپږمه يې له ځمکې او هوا څخه پر افغانستان وسله وال بريد وکړ او له همدې امله وو چې د ملګرو ملتو د امنيت شورى نه يوازې دا چې دا عمل تائيد نه کړ بلکه تردې تېري د وې او نه وروسته يې د ١٩٨٠ کال د جنورۍ په ٩ نېټه غونډه وکړه او داسې پرېکړه ليک يې ترتيب کړ چې روسان بايد بې له قيد او شرطه افغانستان خوشې کړي خو روس له «ويټو» نه په ناروا استفادې سره دا پرېکړه ويټو او له تصويب نه پاتې کړه (١٥٠) بيا وروسته د ملګرو ملتو د عمومي اسامبلې د رای اخيستنو د نتيجو په استناد ويلای شو چې په حقيقت کې د ملګرو ملتو د غړو هېوادو له ١٥٨ غړو څخه د کابل رژيم يوازې هغو ١٩ هېوادو په رسميت پېژندلی چې له افغانستان نه يې د روسانو د وتلو په باب مخالفه رايه ورکړې ده چې په دې کې هم درې رايې د روس د خپلو جماهيرو

د استازو، یوه د کابل د کوډاګی رژیم، پاتې یې د وارسا د تړون د محکومو هېوادو او د هغوی په بنیاده رژیمونو دي چې د روس په ملاتړ قدرت ته رسېدلي او ملي ملاتړ او پایه نه لري (۱۵۱) داچې د کابل رژیم دعوه لري چې دوی د نړۍ له ۸۲ هېوادونو سره رسمي اړیکي لري (۱۵۲) د همدې رای ګیرۍ له مخې یې بنیاده کېږي او په عادي روابطو کې شمېرل کېږي نه په سیاسي روابطوکې.

افغانستان ته د روسانو تر یو لک زیات لښکر له راتلو سره په هېوادکې یو عمومي سکوت رامنځ ته شو، چې ظاهراً بنده شوه خو مجاهدینو خپلې مورچې ټینګې کړې؛ دې سکوت د رضا معنی نه درلوده بلکه دا سکوت تر توپان وړاندې هغې چوپتیا ته ورته وُ چې د تړپان څرې (قاصد) وي؛ روسان په خپل زور مغرور وُ فکر یې کاوه چې نور به زموږ له ډاره څوک په افغانستان کې یو فیر هم ونه کړي یا اوله همدې کبله مزدور ببرک په یوه وینا کې په ډېر غرور وویل نور به څوک په افغانستان کې د یوه فیر توان هم ونه لري (۱۵۳) نو د همدې غرور په څپو کې روسانو هم لاړې آزادې پرېښودي او د موټرو او کسانو له تلاشۍ نه یې لاس واخیست، مجاهدینو له موقع نه په استفادې سره نه یوازې داچې د خپلو سیمو اقتصادي اکمالات وکړل بلکه نظامي اکمالات یې هم د سرو لیسونو په وسیله د هېواد دلویو لارو له لارې ترسره کړل او خپل عملیات یې لرې او نژدې سیمو ته ورسول.

دیوه میاشتنی سکوت خاتمه د مجاهدینو په ډېر زور و شوړ او جهادي ځل بیا پیل شو، دا ځل په پاڅون کې د هېواد دلویو ښارونو مرکزونو لکه کابل

جلال آباد او کندهار هم درنه وښاره واخیسته، د ۱۳۵۸ کال په سلواغه کې په کندهار او هرات کې د «الله اکبر» په مقدس شعار له روسانو سره جهاد پیل شو او په دې دواړو ښارونو کې له کمونستانو او روسانو سره لاس په لستوني جنګ شروع شو (۱۵٤). کمونست رژیم بر لا فې کولې چې دوی داولس او روشنفکرانو په ملاتړ ولاړ دي خود کابل د ۱۳۵۸ دکب د دریمې نیټې اولسي او عوامي پاڅون او بیا د ۱۳۵۹ کال د پوهنتون او لیسو روشنفکري پاڅون د کمونستانو دا دعوه عملاً رده کړه او ټولې دنیا ته څرګنده شوه چې دافغانستان د مجاهد او میړنی ملت ټول اقشار د ښکېلاک د ښمنان او د پردی او الحادی تیري په وړاندې یوموټي او یو صف دي.

پر افغانستان باندې د روسانو له وسله وال تیري سره دافغانستان د مسلمان او میړنی ملت پاڅون سرتاسري او یو مخیز شو، د هېواد په هره پېنځه کې د کمونستي رژیم او روسي ځواک دخ ولو له پاره ګډې هڅې پیل شوې او د روسانو د لس کلن موجودیت په اوږدو کې افغانانو خپله په سلو کې ۹۰ خاوره آزاده کړه او روسانو ته یې ... ونکې کوزارونه ورکړل او د هېواد په هره برخه کې یې د دوی تیري په شا وتمبول او هم له روس نه د ببرک راصادرشوی رژیم په ملي رښتل کېدو سربېره نړیوالو هم وړاته او په ملي او بین المللي سطحه غیرقانوني وګڼل شو.

روسانو له یوې ... وا نظامي هڅې وکړې، وحشت ... بمبارۍ او قتل عامونه یې وکړل او حتی کیمیاوي زهرلړونکې وسله یې ... استعمال کړه خو ونه توانېدل چې دافغانستان پر مسلمان او میړنی ملت داغیرقانوني

او الحادي رژیم ومنی اوبایې په زوره پرې وتپي اوله بلې خوا يې په نړيواله سطحه فشار واچاوه چې دی مزدور رژیم ته بین المللي مشروعیت ورکړي خونا کام شول او دغه مزدور رژیم دتجرید او گوښه کېدو کړۍ نوره هم تنگه شوه. روسانو د ببرک تر بشپړې ناکامۍ وروسته بلې چرې ته لاس واچاوه، د ببرک پرځای یې نجیب دکمونست گوند د مرکزي کمیټې له خوا وټاکه او نړیوالو ته یې داسې ښودل وغوښتل چې گواکې نجیب خوراصادر شوی نه بلکه په خپله په افغانستان کې د ننه قدرت ته رسېدلی دی خو په ملي او بین المللي سطحه د نجیب «حرامي رژیم» د ببرک د «حرامي رژیم» بچی او غلام ابن غلام وگڼل شو نو ځکه هم په ملي سطحه مقاومت تر ټخوا ورسره پوخ او نور شو او هم یې په نړیواله سطحه کوم ملاتړ تر لاسه نه کړای شو.

روسان له ټول وحشت او بربریت سره-سره د افغانستان په نیولو بریالي نه شول، ټولو منافقانه لارو او روشونو یې بقا ته کټه ونه رسوله نو په پای کې یې تر بشپړې ناکامۍ وروسته د ۱۹۸۸ کال د اپریل د ۱۵ د ژنیو د تړون تر پرده لاندې له افغانستان نه د خپلو قواوو ایستل پیل کړل او له افغانستان نه یې خپلې قواوې سر تېښتې، شرمېدلي او ماتې شوې د ۱۹۸۹ کال د فروري په ۱۵ نېټه وایستلې او په داسې حال کې چې په افغانستان کې د روسي قواوو د جنرال سترگې له اوښکو ډکې وې د افغانستان له خاورې نه واوښت، د روس استعماري بیرغ یې ونغښت او بیا یې تر شا هم راونه کتل (۱۵۵).

## [۱۳]

# له افغانستان نه د روسي قواوو تللو نتيجه له جهان نه د روسي قواوو تلل دي

پر افغانستان باندې د روسانو د دوه پړاوېز: غیرمستقیم (۱۳۵۷) او مستقیم (۱۳۵۸) تیری په نتیجه کې (چې تر یوه لسیزه واوښت) افغانستان ته درانه مالي او ځاني او مادي او معنوي زیانونه واوښتل خو په مقابل کې د دښمن هم درانه زیانونه، ماتې او رسوایي ولیدې او په دې توګه دا لسیزه نه یوازې دا چې د افغانستان له پاره ورانوونکې او خونړۍ لسیزه وه بلکه د روس له پاره هم شرموونکې او خونړۍ لسیزه ثابته شوه.

موږ په دې خبره کې غواړو چې په دې لسیزه کې افغانستان ته اوښتي زیانونه او روسي ته وراوښتي رسوایي او پېښې په لنډه توګه وڅېړو:

د افغانستان سرلوړي ملت د خپل دین او خپلواکۍ د ساتلو په لاره کې درونده قیمت ادا کړ او د خپل هېواد د خپلواکۍ ونه یې د خپل تن په وینو ولاړه او ښېرازه وساتله.

لاندې کولو ته تحریک کړل او د افغان او انګریز د لومړۍ خونړۍ جنګ په وسیله هم افغانستان وران او ویجاړ شو او هم انګریزانو د لومړي ځل له پاره شرمیدلې ماته وخوړه او روسانو د افغانستان د ورانۍ او د خپل رقیب «انګریز» د ماتې ننداره کوله (۱۰).

تر دې وروسته روسانو د افغانستان پر ځای له انګریزانو سره غوږونه وجنګول او په ۱۸۶۹ - ۷۳ کلونو کې یې له انګریزانو سره موافقه وکړه چې افغانستان د خپل نفوذ له سیمې څخه د باندې ګڼي (۱۱) خو د هر وخت نه ؤ وتلی چې روس ته بیا د رقیبانو تهدیدونه متوجه شول او د برلین هغه کنګرې چې د آلمان د صدر اعظم بسمارک په مشرۍ د ۱۸۷۸ع کال په جولای کې جوړه شوې وه د ټولې لویدیځې اروپا د هیوادو په وسیله د مدیترانې په سمندر کې د روس د پر مختګ مخه ونیوله (۱۲) او روس یې تر فشار لاندې راوست نو روسانو د انګریزانو د ویرولو له پاره افغانستان ته یو ځل بیا د دوستۍ او دیپلوماسۍ لاس راوږد کړ او په ۱۸۷۸ عیسوي کال کې یې د ستولیتوف په مشرۍ یو عریض او طویل هیأت د امیر شیرعلي خان دربار ته راواستاوه او د مرستې هر ډول وعدې یې ورکړې، د دې هیأت د اګیزه وعده وکړه چې د افغانستان په چارو کې به مداخله نه کوي او د انګریزانو د مداخلې په صورت کې به دوستانه (؟) مرسته کوي او هم د ماوراء النهر روسي ګورنر جنرال امیر شیرعلي خان ته لیکلي وو چې له روسیې سره به د افغانستان دوستي هیڅکله پښېماني (؟) ونه لري! روسانو له افغانستان سره د دوستۍ د غوړو وعدو په رڼا کې له یوې

۱- دې مېړني ملت په دې لسيزه کې يونيم مليون شهيدان ورکړل چې په دې شهيدانو کې زيات شمېر ښځې، ماشومان، سپين ږيري او بې دفاع کسان او هغه بنديان چې په زندانونو کې د ټولو انساني قوانينو او معيارونو خلاف په وحشت او قساوت وژل شوي، شامل دي.

۲- د دې يونيم مليون شهيدانو تر څنګ همدومره ښځې، ماشومان، سپين ږيري او بې دفاع کسان معيوب او معلول شول او ږموږ سپر ټولنه يې د کوډانو، شلانو، ړندو او له کاره لويدلو کسانو د يو زيات شمېر باروا چاوه.

۳- په سلو کې ۸۰ د کليو او ښارونو ودانۍ د وحشيانه هوايي او ځمکنيو بمباريو له امله وراني شوې او د استوګنې کورونه په کنډوالو او ويرانو بدل شول.

٤- په سلو کې ۷۰ د کښت او کرځمکې يا د ويالو، بندونو او کاريزونو د نړيدو له امله او يا هم د سيمې د خلکو د مهاجرت له امله شاړې او خاره پاتې شوې.

۵- په سلو کې ۸۵ تعليمي مؤسسې وتړلې شوې او ماشومان د زده کړې له نعمت نه محروم شول، د زيا تو تعليمي مؤسسو د ورانۍ علت دا و چې کمونستانو د جګړې د سنګر په توګه کارترې واخيست او هم د دوی په اولکه کې پاتې تعليمي مؤسسې د ديني او ملي زده کړو پر ځای د کمونستي او مارکسستي زده کړې له پاره وقف شوې. په دې برخه کې د مجاهدينو له خوا په آزادو سيمو کې جوړ شوي ښوونځي او مدرسې د کمونستانو د بمباريو او نا قرار وحالاتو له امله داسې بې اغيزې پاتې

شول چې د بېسوادۍ د فیصدۍ په راټیټولو کې یې مؤثره مرسته ونه کړای شوه.

۶- شپږ ملیونه افغانان له خپل هېواد څخه مهاجر شول چې زیاته برخه یې په پاکستان او ایران کې میشت شول او نور یې د نړۍ په لیرې او نژدې هېوادونو کې خواره واره، سرګردان او یا هم په نورو ملتونو کې په فکري او ذهني توګه حل او منحل شول.

۷- د هېواد په بېلابېلو برخو کې چې د ښارونو لویې ګلې او رمې موجودې وې او د وریو، غوښو او پیوله محصولاتو نه یې اولس د توجه وړ عایدات درلودل، په بمباریو او یا د کمونستانو په تالاشیو او چور چپاول کې له منځه یوړل شوې.

۸- د هېواد د رنګونه او کاني شتمنۍ چې له لسهاؤ کلونو راهیسې روسي متخصصینو سروې کړې وې او ظرفیت، کمیت او کیفیت یې ورته معلوم ؤ، تر نږدې ته حده چور کړې خصوصاً د یورانیمو له ذخیرو نه یې په لویه پیمانه غلا وکړه او له خواجه رواش او شینډنډ نه یې روسیې ته ولېږدول.

مطلب دا چې په دې نااندوله جنګ کې افغانستان په هراړخیزه توګه وران شو، مادي او معنوي شتمنۍ یې له منځه ولاړې او هغه تمدن چې د امیر شېرعلیخان له وخت نه د میړنۍ په بله په هېواد کې پیل شوی ؤ، له منځه ولاړ. هرڅه په وینو ولمبېدل او هرڅه د وینو بهیر لاندې کړل.

له بله پلوه کمونستي خونړۍ شکېلاک چې هرځای ته تللې ؤ او

هر ملک یې لاندې کړی و، بیا د هغه هېواد دوګروغن چانه و - اوربدلی او د هغه هېواد خپلواکي له منځه تللې وه، روسي سره او خونړي ښکېلاک خپل ښول شوی هېوادونه او مستعمرې په سرپېټی دول ساتلی و، او د بخارد دېکګ حیثیت یې درلود چې اولسونه به یې په نس کې خوړېن شول خود باندې او آزادې نرېه ته به یې غږ راونه ووت او هېڅوک به هم ترې خبر نه شول . دا سلسله په ۱۹۱۷ ع کال په روسیه کې د کمونستي واکمنۍ له منځ ته راتګ څخه راښلېدلې او ترننه راروانه وه خوکله چې روسانو پر افغانستان تېری وکې، دا طلسم مات شو، د بخار د دې خونړۍ دېګ سروالوت او د افغان مجاهدینو مېړانې او سرښندنې نه یوازې دا چې زمونږ غږ جهان ته ورساوه بلکه د روسانو وحشت یې هم رسوا کړ او په نتیجه کې یې د روس تر ښکېلاک لاندې د مرګ په خوب ویده شوي اقوار او مستعمرې هم راوېښې کړل او په ټول کمونستي بلاک کې یې د آزادۍ غورځنګ پیاوړی او غښتلی کړ چې دلته یې په لنډېز سره شمېرو :

۱- پر افغانستان باندې د روسانو د لوخ او بې دلیله تېري کولو له امله د روس د « سوله دوستۍ » ټولې لاپې دروغ شوې او د نړېوالو معاییرو او قوانینو په اساس پړاو ملامت کړای شو.

۲- په افغانستان کې د روسانو د بې جلبه وحشت له امله د دوی د « انسان دوستۍ » دعوې هم باطله شوه او نړېوال د روسانو له خوا له سلګونو هغو قتل عامونو نه خبر شول چې په افغانستان کې یې کړي او هم یې هغه تپیان له نژدې څخه ولیدل چې د روس د کېمیاوي او زهرجنو

وسلو په استعمال سره تيپيان شوي دي .

۳- په جګړه او نښتو کې د روس مدرني او عصري وسلې د مجاهدينو د ايماني مقاومت او ټينګار په نتيجه کې ويجاړې شوې او لويه نظامي رسوايي ورواوښته .

٤- روس ارشو چې په افغانستان کې د روس د خپلو باورې منابعو له خولې د کال ۱۰ مليارده ډالرو لګوي چې دې درانه بار د روس اقتصادي ملا ماته کړه او ژور اقتصادي تاوان يې ورواړاوه .

۵- له افغانستان نه تبديل شويو او بېرته روس ته تللېو عسکرو ژور شعور اخيستی و خصوصاً د آسيايي جمهوريتونو ځوانانو چې په تحت الشعور کې يې اسلام لامرشوی نه و د افغانانو له مبارزې نه په الهام اخيستلو سره د آزادۍ ولولې پيدا کړې .

٦- د روس له خوا افغانستان ته لومړی پړاو راليږل شوي عسکر چې شمېره يې (۱۱۵) زره تنه بللۀ کېده ، په مجموعي ډول بېرته روغ خپل هېوادته ستانه نه شول ، يعنې د دې لومړي تېرې کوونکو په شمېر عسکر روسانو له لاسه ورکړل چې يا مړه او يا ژوبل شول ، که څه هم روسانو په رسمي ډول د خپلو مړو شمېره د پنځلس ديارلس زرو شاو خوا ښوده خو د روس يوه با وجدانه عالم ډاکتر اندري سخاروف چې له لومړۍ ورځې نه پر افغانستان باندې له تيري سره مخالف و په دې لس کلنه جګړه کې د روسانو د مړو شمېره پنځوس زره ښودلې او تر دې زيات معيوبين او تېپيان هم ورپه غاړه شوي دي .

۷- افغان مجاهدینو په هره ډګر کې روسانو ته شرمیدلې ماتې ورکړې او د دوی مجهز لښکر او سنبال قوه یې په هر ځای کې مات کړل.

۸- په نتیجه کې مجاهدینو د خپل هیواد په سلو کې نوي خاوره آزاده کړه ګڼ شمیر حکومتي اداري واحدونه لکه علاقداري، اولسوالۍ او د ولایتونو مرکزونه یې ترې ونیول.

۹- په نړیواله سطحه د اسلامي هیوادونو، نا پیلو هیوادونو آزادي نړۍ او د ملګرو ملتو د مؤسسې له خوا د روس وحشیانه اعمال وغندل شول او د روس د محکومیت پریکړې یې وکړې.

۱۰- د هراړخیزو سیاسي، اقتصادي او اجتماعي ماتو او رسوایي په نتیجه کې روسانو د تړونو تړون ته پناه یوړه او د دې تړون په پلمه د ۱۹۸۹ کال د فروري په ۱۵ نېټه روسي لښکرې شرمیدلې او ماتې شوې په داسې ډول له افغانستان څخه ووتلې چې له شرمه یې شاته راونه کتل او خپل استعماري بیرغ یې رسماً ړنګ او له خاورې څخه ورټول کړ.

د روسانو دې ماتې، شکست او بیرته شرمیدلې تګ که له یوې خوا مونږ ته ډېر پرابلمونه او ستونځې پیښې کړې نو له بلې خوا یې روسیې ته هم ژور مشکلات او پرابلمونه پیدا کړل او د کمونیزم په سرو وینو لړلې خونړۍ ماڼۍ ته یې د داسې زلزلې حیثیت پیدا کړ چې درانه درزونه یې پکې پیدا کړې او اوس هغه وخت رانژدې شوی چې دا د انسان په وینو آباده شوې ماڼۍ د تل له پاره رانسکوره شي او په دې ماڼۍ کې د رامنځ ته شوو درزونو څو نمونې:

الف: روسیې په اروپا او آسیا کې زیات شمیر اسلامي او غیر

اسلامي هېوادونه وخت په وخت لاندې کړي او د خپلو مستعمرو په توګه يې «د شوروي سوسياليستي جماهيرو داتحاد» په نوم خوړلي او له خپلو پښتو او ديني او ملي حقوقو او غوښتنو نه يې محروم کړي دي، هر وخت چې چا سر پکې پورته کړی په بې رحمانه ډول يې کوښلي او له منځه وړي دي خو پر افغانستان باندې د روس تېري او د مجاهدينو مېړني او ايماني مقاومت د دې اسير شوو ملتونو ته هم نوې روحيه ورکړه، پاڅونونه يې وکړل او د خپل حق غوښتنه يې پيل کړه:

۱- پوره يو کال وړاندې د ارمنستان او آذربايجان په جمهوريتونو کې د دې جمهوريتونو ترمنځ د ملي پولو د تجديد په پلمه د رښتې مظاهرې او پاڅيدنې وشوې چې په لسهاوو تنه تلفات يې درلودل او دا نا آرامي لا تر اوسه روانه ده چې اصلي هدف يې د روس له واکه د دې دواړو هېوادونو آزادېدل دي.

۲- د جورجيا د ولايت اوسېدونکو د قهرآميزو مظاهرو په ترڅ کې د خپلو ملي غوښتنو غږ را پورته کړ او په وروستيو وختونو کې يې په وار کوښې اعلان وکړ چې دوی نور له روسيې سره ګډ ژوند نه کوي او د يوه خپلواک دولت په توګه خپل سياسي ژوند سمبالول غواړي.

۳- په اوزبکستان کې خلکو په وار- وارو مظاهرې وکړې او د آزادۍ غوښتنې غورځنګ په تېزۍ روان دی.

۴- په قرغزستان کې د خلکو مظاهرې وکوښلې شوې او دا

آزادي غوښتونكي غورځنګونه لا په شور او خوځښ دوام لري.

۵- دكيف په مركز اوكراين كې خلك راپاڅېدل او خپلې ملي غوښتنې يې اعلان كړې خو د روس وحشي ضربتي قواؤ په بې رحمۍ و كوټل خوغلي يې نه كړاى شول.

٦- د بالتيك جمهوريتونو لتوانيا، لتويا، استوانيا خلكو د خپلې آزادۍ او بشپړې خپلواكۍ غوښتنې د قهرآميزو مظاهرو او پاڅېدنو په ترڅ كې وكړې.

۷- دا آزادۍ غوښتونكي او د كمونيزم د وحشي رژيم له واكه د خلاصون غورځنګونه د ومره ګړندي شول چې يوازې په محكومو جمهوريتونوكې محصور پاتې نه شول او اوس د مسكو ښار ته هم رسېدلي او د روسيې دلوى عالم او با وجدانه انسان اندري ساخاروف په مشرۍ كې د كمونيزم له بېخه ختمېدل او رانسكورېدل غواړي(۱۵٦).

ب: د روسيې هغه اقمار چې په بېلابېلو ختونو كې يې په شرقي اروپا كې نيولي، خپل كمونستي رژيمونه يې پكې ټينګ كړي، خپل عسكر يې پكې ځاى په ځاى كړي او خپل ګوډاګيان يې قدرت ته پكې رسولي اوس بيو ځل بيا را پاڅېدلي، د كمونيزم او د روس له شره ځان خلاصول غواړي:

۱- د مجارستان يا هنګرۍ هېواد چې په ختيځه اروپا كې د لهستان رومانيې، يوګوسلاويې، اتريش او چكوسلواكيې ترمنځ پروت دى، د دوهمې نړيوالې جګړې په پاى كې د روس منګولو ته ولوېد روسي عسكرو لاندې كړ او خپل ګوډاګي رژيم يې پكې ټينګ كړ په ۱۹۵٦ كال

هلته د روس ضد يو پاڅون وشو چې په شدت سره وکوټل شو او له دې امله تر او سه د روس په منګولو کې پاتې دی. خو اوس خلک راپاڅيدل کمونستي شورا يې منحل کړه او د آزاد و انتخاباتو له لارې د غير کمونست حکومت جوړولو ته چمتو دي.

۲- لهستان يا پولينډ د شرقي اروپا يو بل هيواد دی چې روسانو تر دوهم نړيوال جنګ وروسته لاندې کړ، خپل عسکرې پکې واچول او خپل کوډاګی حکومت يې پکې ټينګ کړ، دا حکومت تر ۱۹۸۰ کال پورې په همهغه قوت ټينګ پاتې و. خو د افغانستان د پياوړي اسلامي انقلاب په پيروۍ په لهستان کې هم يو پياوړي ملي او ديني غورځنګ پيل شو، ليخوانيسا په دې هيواد کې لس مليونه کارګر سره غونډ کړل او تر ۹ کلنې مدبرانه مبارزې وروسته يې د پولينډ کمونيستي حکومت رنګ او د همبستګۍ ملي حکومت يې رامنځ ته کړ.

۳- ختيځ آلمان: کله چې په دوهمه نړيواله جګړه کې هيټلري نازيانو ماته وخوړه او المان د متحدينو لاس ته ولويد نو روسانو د آلمان د يوې برخې په لاندې کولو سره د ختيځ آلمان کمونستي جمهوريت رامنځ ته کړ، خپل زيات شمير عسکر يې پکې واچول د برلين ويشاګي ديوال يې جوړ کړ او دا دی په دې حالت پوره پنځه خلويښت کلونه تير شول خو په روان کال کې د ختيځ المان د خلکو عمومي پاڅون دا ويشاګي ديوال رنګ کړ او اوس هغه وخت رانږدې شوی چې د آلمان وحدت تأمين او د روس د کمونستانو لاس له هغه هيواد څخه لنډ شي.

۴- چکوسلواکيا: د ختيځې اروپا دا هيواد هم د دوهمې نړيوالې

جگړې تر ختمېدو وروسته د روسیې لاس ته ولوېد او خپل کمونستي حکومت یې پکې جوړ کړ، په ۱۹۶۸ کال د وبچک دیموکراسي اعلان او د روس لاس لندې ول وغوښتل خو د وارسا د ګډو پوځونو برید پرې وکړ، دا هېواد یې لاندې او د وبچک یې ونیو، او س په دې هېواد کې د آزادۍ غوښتنې غورځنګ یو ځل بیا او ښ شوا و د وبچک په مشرۍ خلک راپا څېدل، کمونستي رژیم سیې رنګ او د خپلې بشپړې آزادۍ په لور چټک پرمختګ کوي، د دې هېواد خلکو دیوې لویې مظاهرې په ترڅ کې د لېنین مجسمې ته اور ورته کړ او عملاً یې له روس او کمونیزم سره د خپلې کرکې او ژور نفرت مظاهره وکړه.

۵- بلغارستان د روسیې یوه بله سپوږمۍ ده چې تر دوهمې نړیوالې جګړې وروسته یې په مدارکې راغلې او هلته یې وحشي کمونست رژیم پکې ټینګ کړې وخو اوس دا خلک هم راپا څېدلي او د کمونیزم له غورځنګ ځان خلاصول غواړي چې مبارزه یې ورځ په ورځ تودېږي او د کمونست حکومت د رانسکورولو په درشل کې دي.

همداراز د روس په نورو اقمارو، مستعمرو او لاس پوڅو هېوادونو کې هم د آزادۍ او استقلال په خاطر او د کمونیزم او روس پرضد پاڅونونه روان دي، نه یوازې د روس په سیاسي اتموسفیر کې بلکه د کمونیزم په نړیواله ساحه کې چین، یوګوسلاویا او حتی هند کې تحولات او بدلونونه یا راغلي او یا د راتلو په حال کې دي (۱۵۷).

د نړۍ د ټولنیزو او ریکو وسایل (مس میډیا) که هرڅومره دا تحولات بدلونونه او تغییرات د کوربا چوف د اصلاحي - پروګرامونو محصول وګڼي خو حقیقت دا دی چې د کمونستي نړۍ دا ټول تحولات له کمونیزم او روس سره د ټولو مسلمانانو او افغانانو هغه مېړنۍ مبارزه ده چې یونیم ملیونه ککرۍ پکې خاورې شوې خو د روس او کمونیزم پښو ته ټیټې نه شوې، دا د الله اکبر د هغه ملکوتي غږ ازانګه دې چې روسان به په هره سلګه وال ډګرکي ترې په لړزه او تېښته وواو دا ټول د هغې قربانۍ محصول دي چې افغانانو په اخلاص او مینه ورکړه او ټولې نړۍ ته یې د روس او کمونیزم له واکُ نه د نجات لاره خلاصه کړه.

په نتیجه کې ویلای شو روس که هرڅومره ته جبیره کېدونکې زیانونه افغانستان ته واړول خو په خپله یې هم داسې ژور ټکانونه ولیدل چې نورنو له دې درنې زلزلې نه خپله د کمونیزم د اسمان پروینو لړلي سره مانۍ روغه نشي خلاصولی.

خوا وکړای شول چې خپل استعماري رقیب انګریز دې ته اړ کړي
چې د برلین کنګره په ۱۸۷۸ع کال په اروپا کې د سولې تړون وکړي
او له بلې خوا یې په دې اړه یې کوا او راشو در شو یو ځل بیا انګریزان
شکمن کړل او دې ته یې وهڅول چې پر افغانستان باندې د وهم
ځل تیری وکړي او روس یو ځل بیا د افغانستان له ورانېدو او د
انګریزانو له رسوا ماتې نه خوند واخلي او له افغانستان سره د کومکونو
شوې وعدې یې تر پښو لاندې کړې (۱۲).

⁂

[١٤]

# خدایه! هرڅوک چې غواړې پرېباسې!
# له درویشانو سره یې کښېباسې!

دهېواد دنامتو عارف شیخ الاسلام خواجه عبدالله انصاري یو مناجات دی:

خدایا!
هر که را خواهی براندازی
با درویشان دراندازی

دا مناجات زر کاله پخوا ویل شوی او دیارلس کاله پخوا د همدې لوی عارف د سیمینار په ویاړ په پښتو ژباړل شوی:

خدایه!
هرڅوک چې غواړې پرېباسې!
له درویشانو سره یې کښېباسې!

دا مناجات زما په زړه کې ناست دی او په همدې لنډ مناجات کې ما ته د خپل تاریخي او تاریخساز ملت ټول سرنوشت نغښتی ښکاري.
زموږ ملت درویش ملت دی، متوکل ملت دی، باایمانه ملت دی،

سرلوړی ملت دی ، نه تسلیمېدونکی ملت دی ، نه ایل کېدونکی ملت دی او په خپل ټخوس زرکلن ژوند او پنځه زرکلن تاریخ کې یې داویاړ لرلی چې چاته تسلیم شوی نه دی او څوک چې ورسره کښېوتلی بیا روغ نه دي تري تللی.

له بلې خوا زموږ هېواد حساس جغرافیایي موقعیت او ستراتېژيک حیثیت لري نوتل د دښمنانو د تېري نښانه ، د زورګیرانو د یرغلونو هدف او د استعمارګرانو په نظرخوږه سورې ده او تل د همدوی د راپېرځېدلو، غورځېدلو ، رالوېدلو او شرمېدلو ځای او ډګر.

زموږ ملت هېڅکله هم آرام نه دی پاتي شوی ، په هرو شلو پېښت ، پڅوسو کلونو کې له یوې یا بلې خوا تېری پرې شوی او بیا دا تېری مات شوی او له دې سره زموږ د هېواد هرنسل جنګ دیده شوی او جنګ آزموده شوی دی .

« له سکندره ترسخوندره » دا ټوله موده زموږ د بریالي او بریالي ملت د مبارزو روڼ تاریخ دی ، د دوی د سربښندنو ویاړمن داستان دی او د دوی د مېړانې طلايي نښته لیک.

هو ! د ټولو تاریخي دښمنانو ترماتې وروسته دادي روسان هم مات شول . هغه روسان چې زموږ د ټولو مبارزو او سوبو داستان يې لوستي وُ او زموږ د هر ډول حربې او ضربې له پاره یې تیاری نیولی وُ خو کله چې له دې دروېښانو سره کښېوتل ، داسې پرېوتل چې په خپل هېواد کې د ننه هم د پاڅېدلو او سمېدلو نه دي .

روسانو لوی پلان درلود، لوی پروګرام يې درلود ، لوی هدف

يې درلود او داوږدې او ږدې سترا تېږې له مخې راغلي وو، د وې د ځوېتو خلقيانو او پرچميانو له غمه مړه نه وو، د دوی د اقتدار له پاره يې قرباني نه ورکوله ، بلکه دوی غوښتل چې د خلقيانو او پرچميانو نه د استحکام د پل کار واخلي او بيا د اپل همدلته په سيند لاهو کړي. خو کله چې د افغانانو له راسخ ايمان او کلکې ارادې سره مخامخ شول ، همهغه څه وشول چې له نورو ښکېلاکګرو سره شوي وو، همغې لارې ته سم شول چې نور ښکېلاکګر ورته سم شوي وو او په دې ډول روسانو د افغانستان د مؤمن او مېړني ملت له لاسه داسې نه هېرېدونکې ماته وخوړه چې نه يې د ژبنيو ترون په پرتاګه پښتولای شي او نه يې هم د خپلې انساندوستۍ او بشردوستۍ په ادعاګانو کې .

په افغانستان کې د روسانو د ماتې اساسي فکتور زموږ د مؤمن ملت ملي او سرتاسري پاڅون و. نور ټول فکتورونه ضمني او جزوي دي ، که قيام نه وای هيڅ به هم نه وو ، که د غازي مېړانه نه وای د هغه او دغه پيسواو وسلو هيڅ هم نشوای کولای ، د ژبنيو ترون هيڅ پدل نه درلود ، که د شهيدانو د پاکو وينو نيل نه وای ډوب کړای دا فرعون مخ په ښکته راروان و ، تو دوا وبو ته راروان و او د هند نيمي وچې ته راروان و .

زموږ د غازيو تورې او زموږ د شهيد وينې نه يوازې دا چې زموږ د تاريخي هېواد او سرلوړي ملت آزادي تأمين او تضمين کړه بلکه د پاکستان آزادي هم او د سيمې آزادي هم. زموږ د اولس د «الله اکبر» ملکوتي

غرنه یوازې په افغانستان کې د شرک بتان را نسکور او مات کړل بلکه د منځنۍ آسیا په بتکدو یې هم زلزله راوسته او هلته یې هم د توحید ناري لوړې کړې. زموږ د آزادۍ غور ځنګ نه یوازې دا چې په افغانستان کې د سره ښکیلاک سره زنځیرونه مات کړل بلکه د ختیځې اروپا په اقمارو کې یې هم د استعمار د زنځیرونو کړۍ وشرنګولې او په پولینډ، هنګري، ختیځ آلمان، چکوسلواکیا او نورو کې یې د دې زمینه رامنځ ته کړه چې د روسي ښکیلاک زنځیرونه دانه-دانه کړي او د خپلې بشپړې آزادۍ لاره ونیسي.

بخواهم همداسې شوی وو د کوم پرغلګر به چې په افغانستان کې پښه وښویېده بیا په ټول جهان کې را ټم شوی نه و او اوس چې دلته د روس پښه وښویېده، په هیڅ ځای کې به یې پښه بنده نه شي.

رښتیا هم چې د خواجه مناجات زموږ د ملت د مبارزو ښه ځرګندوی او ښکارندوی دی:

خدایه!

هر څوک چې غواړې پرېباسې

له درویشانو سره یې کښېباسې

«پای»

# حوالي او توضيحات

[۱]

۱- د تفصیل له پاره وګورئ : وحشیانه تېرئ او شرمېدلې ماته ، حبیب الله رفیع ، امان کتاب ، ۱۳۶۴ ، پېښور.

۲- افغانستان در مسیر تاریخ ، میر غلام محمد غبار، ۱۳۴۶، کابل ، ۳۷۹ مخ .

۳- وحشیانه تېرئ او شرمېدلې ماته ، ۱۰ مخ .

۴- افغانستان در مسیر تاریخ ،۳۸۱ مخ .

۵- په نولسمه پېړۍ کې افغانستان ، سید قاسم رښتیا ، تاریخ ټولنه .

۶- د تفصیل له پاره وګورئ : « روسانو پر افغانستان باندې خپل عمل سنجولی وُ خو د افغان مجاهد اولس د پاڅون عکس العمل یې په تصور کې هم نه وُ » د رفیع مقاله ، مجاهد ولس ، لومړی کال ، ۱۶-۱۷ ګڼه ، د ۱۳۶۳ د مرغومي لومړۍ .

[۲]

۷- تاریخ مختصر افغانستان، مرحوم پوهاند عبدالحی حبیبي، ۱۳٦۸ رطبع دوم)، سازمان مهاجرین مسلمان افغانستان، تر ۲۷۳ مخ وروسته.

۸- وحشیانه تیری او شهید لی ماته، تر ۱۰ مخ وروسته.

۹- همدا اثر، ۱۲- ۱۳ مخونه.

۱۰- تفصیل په افغانستان درمسیر تاریخ او وحشیانه تیری کې ولولئ!

۱۱- همدا اخځونه.

۱۲- روسیه در آرزوی رسیدن به آبهای گرم، سیدرسول، پېښور، ۱۳٦۴، ۱۹ مخ.

۱۳- د تفصیل له پاره وګورئ: افغانستان درمسیر تاریخ او وحشیانه تیری.

[۳]

۱۴- د تفصیل له پاره وګورئ افغانستان درمسیر تاریخ تر ۳۸۱ مخ وروسته.

۱۵- وحشیانه تیری تر ۱۳ مخ وروسته.

۱٦- همدا اثر.

۱۷- بین المللي تړونونه او روسان، انجنیر محمد آصف اکرام، خپلواکي مجله، لومړی کال، لومړۍ ګڼه، جدی - حوت ۱۳٦۴، ۹۴ مخ

[۴]

۱۸- شپېته کلنه نه شلېدونکی دوستي، رسلان سيکوف، مسکو ۱۹۷۹ع، ۲۰ مخ .

۱۹- جنبش مشروطيت در افغانستان، ارواښاد علامه پوهاند عبدالحی حبيبي، دسازمان مهاجرين مسلمان خپرونه، ۱۳۶۴، ۱۵۳ مخ. داستقلال څلورمه جبهه، د حبيب الله رفيع سريزه، امان کتاب، ۱۳۶۵، «يوولسم» مخ .

۲۰- مناسبات افغانستان و اتحاد شوروی، (داسنادو مجموعه) دافغانستان او روسيې دخارجه چارو د وزارتونو خپرونه، کابل ۱۹۶۹، ۱ مخ .

۲۱- شپېته کلنه نه شلېدونکی دوستی، ۵ مخ .

۲۲- مناسبات افغانستان ...، ۲-۴ مخونه .

۲۳- همدا اثر، ۲۱-۲۲ مخونه .

۲۴- شپېته کلنه نه شلېدونکې دوستی، ۸ مخ .

۲۵- مناسبات افغانستان ...، ۱۰ مخ .

۲۶- دا رسوايي هغه وخت پېښه شوه چې روسانوله نقشې سره سم دجدی د ٦ په اتوبجو د تاشکند له راډيونه د ببرک ويبا نشرکړه خو کابل راډيو د دوی له پروګرام سره سمه لانه وه لاندې شوې اودامين د رژيم خبرونه يې خپرېدل .

[۵]

۲۷- مناسبات افغانستان ...، ۱٦-۱۷ مخونه .

۲۸- د افغانستان د خارجه وزارت، د روس او ترکستان د مدیریت رسمي قلمي راپور، د لیکوونکي آرشیف.

۲۹- همدا راپور.

۳۰- همدا سند.

۳۱- خاطرات امیر بخارا، د ده په خپل قلم، میثاق خون، دوهمه دوره، لومړی کال، دریمه ګڼه، ۱۷۰ مخ (د اصلي کتاب عکسي متن).

۳۲- تاریخ جنبش اسلامي وملي مسلمانان آسیای میانه درمقابل کمونیزم روس، د فضل الرحیم مروت لیکنه، د عبدالجبار ثابت ژباړه، پېښور، ۱۹۸۳، ۹۹ مخ.

۳۳- خاطرات امیر بخارا، د میثاق خون مجله، ۲۴- ۲۶ مخونه.

۳۴- امان افغان، د ۱۳۰۰ کال کلکسیون.

۳۵- په ورېښمین کاغذ لیکل شوی رسمي راپور، د لیکوونکي - خانګي آرشیف.

۳۶- د دې جریدو د زیاتې معرفي له پاره وګورئ په افغانستان کې د ژورنالیزم تاریخچه، د حبیب الله رفیع ترجمه او تکمیل، کابل، ۱۳۵۶ کال، ۲۴۳- ۲۶۶ مخونه.

۳۷- افغانستان و مسأله آزادی بخارا، محمد صدیق فرهنګ، مجاهد ولس، د دوهم کال ۱۱- ۱۲ ګڼه، د ۱۳۶۴ کال د سرطان لومړۍ نېټه.

۳۸- د خارجه وزارت قلمي راپور، د لیکوونکي آرشیف.

۳۹- د شوروي اتحاد د خارجي سیاست سندونه، د شوروي اتحاد خارجه وزارت، مسکو، ۱۹۵۹ ع، دوهم ټوک، ۱۹۹ مخ. (د اسند زما

گران دوست شهید مصطفی مندیزی شینواری په ۱۳۴۸ کال کې ماته زما په غوښتنه له روسي ژبې څخه ژباړلی و. ده شپږ کاله په روسیه کې تېر کړي وو خو په راغبرگېدو سره یې اسلامي عقیده او ملي باورونه هم پیاوړي شوي وو او ټلوونه ـ کلونه یې له کمونیزم د ضدیت ښودلو په خاطر د راډیو افغانستان د تفسیر شریف او سیرة النبی (ص) د پروگرامونو له لارې خپل اولس ته خدمت کاوه خو د خلقیانو له خونړي کودتا نه څو میاشتې وروسته د کمونستانو له خوا له خپلو خپلوانو سره یو ځای په ډېر وحشت ونیول شو او د پاکو شهیدانو لاره یې ونیوله. ارواح یې دې ښاده وي).

۴۰ ـ دا ځکه چې د دوو لويو استعماري قوتونو ترمنځ پراته یوه کوچنۍ هېواد ته له دواړو سره دښمنی پالل نا ممکن وو سره له دې چې په همدې وخت کې یې له دواړو خواوو نه راغلو مهاجرینو سره انساني او اسلامي همدردي کوله او پالل یې.

[٦]

۴۱ ـ رویداد لویه جرگه دارالسلطنه کابل، ۱۳۰۳ ش، برهان الدین کشککی، کابل، ۱۳۰۴ هـ ش.

۴۲ ـ خاطرات آقا بکف، د دکتور حسین ابوترابیان ژباړه، تهران، ۱۳۵۷، ۷۴ مخ.

۴۳ ـ همدا کتاب

۴۴ ـ د دې جاسوسانو د تحقیق پاڼې د لیکونکی په آرشیف کې خوندي دي.

۴۵- د هند د وایسرا په نوم له لندن څخه د هند د چارو د وزیر لیک، قلمي نقل، د لیکونکی آرشیف.

۴۶ - خاطرات آقا بکف، ۹۶-۹۷ مخونه.

۴۷ - امان افغان، د ۱۳۰۴ کال کلکسیون.

۴۸ - د امان الله خان د وزیر حربیه محمد ولي خان په نوم د حضور د یاور رسمي لیک، قلمي، د لیکونکی آرشیف، د ۱۳۰۴ کال د دلوې د ۱۷ نېټې.

۴۹ - د وزیر حربیه په نوم د خارجه چارو وزارت رسمي لیک، قلمي، د لیکونکی آرشیف، د ۱۳۰۴ کال د جدي د ۴ نېټې.

۵۰ - امان افغان، ۱۳۰۴ کال کلکسیون، د دلوې کمې. د افغانستان پېښلیک، پوهاند عبدالحی حبیبي، کابل، ۱۳۵۲ کال، ۲۴۹-۲۵۰ مخونه.

[۷]

۵۱ - مناسبات افغانستان و شوروي، ۲۶-۲۷ مخونه.

۵۲ - خاطرات آقا بکف، ۲۰۰ مخ.

۵۳ - نخستین تجاوز روسیه در افغانستان، استاد خلیل الله خلیلي، ۱۳۶۳ کال، اسلام آباد.

۵۴ - امیر حبیب الله خادم دین رسول الله، شاه آقا مجددی، لاهور، ۱۳۶۳ کال ۷۹ مخ.

۵۵ - مناسبات افغانستان و...، ۵۳-۵۵ مخونه.

۵۶ - همدا کتاب، ۷۷-۷۸ مخونه.

[ ۳ ]

# ښکاره دښمني
# او وسله وال تېری

د افغان او انګرېز تر دوهمې جګړې وروسته بيا هم (روس) غوښتل چې د غولونې د سياست له مخې له افغانستان سره ډيپلوماتيک اړيکې ولري څو د ضرورت په وخت کې بيا هم له افغانستان نه د ډار د بوږ په حيث کار واخلي خو د افغانستان د وخت پاچا امير عبدالرحمٰن خان چې له يوې خوا د انګرېزانو دوست او تحت الحمايه و او له بلې خوا يې روسيه په تمامه معنی پېژندلې وه، د روس دا يو ځل بيا راغوښتلی لاس همداسې بې روغبړې پرېښود او دې بې اعتنايۍ بېرته د روس اصلي استعماري څېره را برسېره کړه او د ښکاره دښمنۍ په بڼه يې د افغانستان پر خاوره وسله وال تېری پيل کړل. د ۱۸۸٤ع کال د فروري په ۱٤ نېټه يې "مرو" چې د افغانستان يو تاريخي ولايت و د زور له لارې له خپلو نيول شوو سيمو سره مل کړه، تر دې وروسته يې په ۱۸۸۵ع کال کې د افغانستان پر "ذوالفقار"، "آق رباط" او "پنجده" حمله وکړه او لاندې يې کړل او هم يې په ۱۸۸۷ع کال کې سردار محمد اسحق خان

[۸]

۵۷ - د تفصیل له پاره وګورئ : مناسبات افغانستان واتحاد شوروی.

۵۸ - د تفصیل له پاره وګورئ : جنایات ودسایس روس در افغانستان ، ډاکتر حقشناس ، ۱۳٦۳ کال ، ایران .

۵۹ - دافغانستان مسأله د تاریخ او نړیوالو حقوقو او قوانینو په رڼا کې ، رفیع ، قلم مجله ، لومړی کال ، لومړی او دوهمه ګڼه ، د ۱۳٦۵ وری - چنګابن .

٦۰ - غبار ، افغانستان در مسیر تاریخ ، تر ۳۸۱ مخ وروسته .

٦۱ - مناسبات افغانستان واتحاد شوروي ، ۲۱-۲۲ مخونه . شپېته کلنه نه شلېدونکی دوستي ، ۸ مخ .

٦۲ - خاطرات آقا بکف ، ۷۴ مخ .

٦۳ - د آزادۍ تلاش ( سفرنامه ) میا اکبر شاه ، د پېښور چاپ .

٦۴ - د تحریک لومړي یو اصلاحي او اجتماعي تحریک وُ چې انجمن اصلاح الافاغنه نومېده خو دا وخت یې سیاسي رنګ واخیست او په سرخپوش واوښت .

٦۵ - وګورئ : « وحدت » ( ورځپاڼه ) " له کابل نه پېښور ته دولي خان دراتللو راپور ، د ۱۹۸٦ کال د سپتمبر د ۱۲ نېټې ګڼه .

٦٦ - ستوریالی ، حاجی خان میر هلالی ، ۱۹٦۷ ، پېښور ، ٦۰ مخ .

٦۷ - وګورئ د آقا بکف خاطرات .

٦۸ - ډاکتر حقشناس « د سایس وجنایات روس در افغانستان » ۷۱-۷۲ مخونه . ډاکتر حق شناس د اخبار د مدیر نوم نه ښيي او سند یې

د استاد خليلي ياد داشتونه دي، څرنګه چې د استاد خليلي زياتـــې تاريخي ليکنې لکه د دوی عالي شعرونه غوندې شاعرانه مبالغې او- اغراقونه لري نو ځکه د استفادې په وخت کې تأمل غواړي او زه د همدې تأمل په نظر کې نيولو سره د لوستونکو د معلوماتو په غرض د اتفاق اسلام د دې مدير نوم نسيم چې «سرور جويا» نوميده او تر زندان وروسته يې د مايوسۍ ژوند کاوه.

۶۹- د تفصيل له پاره وګورئ: جنبش مشروطيت در افغانستان، دار واښاد پوهاند عبدالحی حبيبي تأليف.

۷۰- د ويښ ځلميان په باب د ښاغلي عبد الجليل وجدي د ويښ ځلميان رساله چې په ۱۹۸۱ کال د پيښور پوهنتون د سنټرل ايشا علمي ادارې خپره کړې او هم د غلام محی الدين زرملوال د «جمعيت ويښ ځلميان» رساله چې سازمان مهاجرين مسلمان په ۱۳۶۷ کال کې خپره کړې ولولئ!

۷۱- د افغانستان ببليګ، د پوهاند حبيبي اثر.

۷۲- د ليکونکي ځاني ياد داشتونه.

۷۳- د ويښ ځلميان د څو لومړنيو کسانو له خولې ياد داشت.

۷۴- اوسنی ليکوال، بېنوا، ۱۳۴۰، لومړی توک، ۱۸۱ مخ

۷۵- د تره کي لنډه بيوګرافي، ۱۳۵۷، کابل.

۷۶- اوسني ليکوال، ۱۸۱ مخ.

۷۷- د تره کي لنډه بيوګرافي.

۷۸- اوسني ليکوال، ۱۸۰ مخ.

۷۹- د اکسان اکثره د کمونيزم تر واقعي رانګ سره وځورول شول،

او هم يې ځينو مبارزې دګرته راودانګل او په خپلو تېروکړو پښېمانه دي نوځکه يې له نوم اخيستنې ځنه تېرېږم.

۸۰ - د مناسبات افغانستان و شوروي په کتاب کې يې يوشمېر سندونه او تړونونه موجود دي.

۸۱ - د دولت حقوقي تعبير په افغاني ټولنه کې د واکمنۍ هرم دی او د دولت قانوني مشر پاچا يا رئيس جمهور وي چې د ټولو قوو مشرۍ په غاړه لري.

۸۲ - د حکومت قانوني تعبير په افغاني ټولنه کې د اجرائيه قوې تشکيل دی چې مشرتوب يې صدراعظم يا مشروزير ويل کېږي او د وزيرانو شورى پرې راغونډه وي.

۸۳ - د دې موضوع د تفصيل له پاره وګورئ: صباح الدين کشککي، « دهه قانون اساسي غفلت زدگی افغانها و فرصت طلبی روسها » دافغانستان ثقافتی شورا، ۱۳٦۵ کال، ۹ - ۲۷ - مخونه.

۸۴ - د ۱۳۴۳ کال داساسي قانون ۳۱ ماده د مطبوعاتو دآزادۍ او ۳۲ ماده داحزابو دآزادۍ په باب وه.

۸۵ - د دې قانون يوه مسوده ليکونکي د رلېږده چې له نورو سندونو سره له منځه ولاړه.

[۹]

۸٦ - دافغانستان دخلکو د دموکراتيک ګوند او د هېواد دکارګرې طبقې ځلکبن لنډ تاريخ، کابل، ۱۳۵۷ کال، ۱۳ مخ.

۸۷ - د مشرانو جرګې له پرېکړې سره سم حکومت د دې جريدې

د بندولو رسمي اعلامیه نشر کړه او اوومه ګڼه یې پرښنبوده چې
خپره شي.

۸۸- د اساسي قانون ۳۲ مادې د احزابو پر جوړولو سربېره
اجازه ورکړې وه چې افغانستان د خپلو ورا او سوله ایزو غوښتنو
له پاره غونډې وکړي.

۸۹- په دې مظاهرو کې بې طرفو خلکو او نورو ډلو هم
برخه اخیسته خو بهره برداري به تر ډېره حده دوی ترې کوله.

۹۰- د ۱۳۴۴ کال د لړم په دریمه نېټه چې د ډاکټر محمد یوسف
حکومت ته د اولسي جرګې له خوا رایه ورکول کېدله او ځیني کسانو غوښتل
چې د رای ګیرۍ له جریان نه خبر شي او د اولسي جرګې تر تالار راوګرځېدل
د څو کسانو د وژل کېدو پېښه وشوه چې کمونستانو ښایسته استفاده ترې
وکړه او د ډاکټر یوسف حکومت چې سره رایه یې اخیستې وه سقوط وکړ
کله چې د میوند وال حکومت رایه اخیستله نو ترتیب داسې ونیول شو
چې ټول جریان دې د راډیو په وسیله مستقیماً په ټول هیواد کې
خپور شي چې دا دود د دیموکراسۍ په دوره کې تر پایه پاتې و او کمونستانو
له دې طلایي موقع او له پارلماني مصئونیت نه په استفادې سره خپل
ټول مرامونه د دولتي راډیو په وسیله نشر کړل.

۹۱- له همدې وخت نه د دې ډلو په شبنامو، نورو جریدو او
مظاهرو او غونډو کې یو په بل پسې تبلیغات پیل کړل.

۹۲- د اعکس بیا وروسته پرچمیانو د شبنامو په بڼه په ګڼ شمیر
کې نشر کړه.

۹۳- دا وینا د اوسي جرګې په جریدي یوه ګڼه کې خپره شوې هم وه چې خلقیانو بیا په ګڼ شمېر کې تکثیر کړه .

۹٤- دا اظهارات پنجشیري په زندان کې یوه باوري سړي ته کړي وو.

۹۵- خلقیانو د اطلاعاتو او کلتور د وزارت دا رسمي امر په نورو آزادو جریدو کې چاپ او په زیاتو پاڼو کې یې تکثیر کړ.

۹٦- پښتو کتاب ښود ، حبیب الله رفیع ، د بیهقي کتاب خپرولو مؤسسه ، ۱۳۵٦ ، کابل ، ۲۳ مخ .

۹۷- له روس سره داعتمادي دخاصو اړیکو په باب وګورئ : دهٔ قانون اساسی ، ۵۳-۵۴ مخونه .

۹۸- د ۴۳ شپې په سپای کې د حکومت ضربتي قواوُ د بریدپه کولو سره د مسلمانانو داغونډه تس نس کړه علما یې په لاریو کې واچول د ننګرهار په دښتو کې یې پلي کړل او بیا یې زندانونو ته واچول.

[۱۰]

۹۹- فیض محمد د داوُد په وخت کې د کورنیو چارو وزیروُ چې د هېواد په ټولو ولسوالیو کې یې پرچمي اولسوالان وټاکل او بیا د کمونستانو په دوره کې د سرحداتو فعال وزیروُ چې د خدرانو توریالیو مجاهدینو د یوې مرکې په ترڅ کې د خپلو ناوړه اعمالو په سزا ورساوه او دوزخ ته یې ولېږه .

۱۰۰- د دې وینا عکسی متن وګورئ : اسناد تاریخي افغانستان ، ګردآورنده : ننګیال ، فرهنګ جهاد ، ۱۳٦٦ ، پشاور ، ۵٤ مخ .

۱۰۱- دا د افغانستان د خپلواکۍ د تلین په مناسبت رسمي وینا وه

چې هر کال به د دولت د مشر له خوا کېدله.

۱۰۲- دالویه جرګه د ۱۳۵۵ کال دسلواغې په ۱۰ نېټه پرانیستله شوه چې تر مجلس ورځنیو غونډو وروسته یې نوی قانون تصویب او داؤد خان دجمهور رئیس په حیث وټاکه. (جمهوري پلوشه، د همدې میاشتې ګڼه).

۱۰۳- په دې مسوده کې کمونستي اهداف دالفاظو په پوښ کې نغښتل شوي، په ګڼ شمېر کې ویشل شوې وه اوله حکومت نه یې غوښتل چې دا اهداف دې داساسي قانون په متن کې ځای کړای شي.

۱۰٤- دې ته ورته مطالب یې په خپلو ځینو نورو وینا وُکې هم ځای کړل.

۱۰۵- دې خپرونې کتابي بڼه درلوده او خلقیانو د خرڅلاو له پاره وړاندې کړې وه چې بیه یې ۱۰ روپۍ وه.

۱۰٦- داخپرونه پرچمیانو په ورځ یا دوه ویشله چې په ګڼ شمېر کې چاپ شوې وه.

۱۰۷- د دې پاڼو پر شمېر د لیکونکی لاس ته لوېدلې وې چې زما له نورو اسنادو سره ضایع شوې.

۱۰۸- اجمل خټک د ظاهرشاه په وروستي کال له پاکستان نه کابل ته راوتښتېد او له هغه ځایه یې په پاکستان کې د ټولو تخریبي فعالیتونو رهبري کوله او هم یې د داؤد او خلقیانو حکومت ته د پاکستان ضد پلانونه جوړول تر څو په ۱۳٦۷ کال کې د مجاهدینو له خوا دکابل رژیم له محاصرې سره یې ټکه شو او بېرته پاکستان ته راستون شو او دلته

هم د پاکستان د هلته ایزې مفاهمې د وسایلو د خبرتیا له مخې د بمونو اېښودلو په غیر انساني پېښو کې ککړ دی .

۱۰۹- په دې باب په ۱۳۵۷ کال کې خلقیانو یوه رساله خپره کړې وه چې دامېن په اظهاراتو ولاړه وه .

۱۱۰- څرنګه چې د داؤد په وخت کې د قومي نوموړو خپرول بند شوي وو نو په راډیو کې د تره کی په ځای ترقي وویل شو .

۱۱۱- د همدې سیل بینانو زیاتو کسانو د خلقیانو تر راتګ وروسته داتګ په خپل کریدټ کې حساب کړ او له خلقیانو سره یې ځانونه پیوند کړل .

۱۱۲- تره کی تر واک وروسته ویل : ما خپلو ملګرو ته ویلې چې که کله زما د نیولو اعلان وشو نو تاسې انقلاب (۱) پیل کړئ ، ظاهراً هم دا د دوی د نیولو خبر د خلقیانو د کودتا پلمه شوه .

[۱۱]

۱۱۳- د هر وملکي کمونستانو په دې اعتراف وکړ چې مونږ په هغه شپه وسلې تر لاسه کړې وې .

۱۱۴- هغه وخت راډیو د غرمې له خوا په ۱۲ بجو شروع کېدله ، له شروع نه یې یوازې ۱۵ دقیقې تېرې وې چې خلقیان ور ننوتل او د راډیو کارکوونکو ته یې امر وکړ چې راډیو بنده کړي او دوی یې له راډیو نه وایستل .

۱۱۵- په دې ورځ د خلقیانو وحشت دومره زیات و چې هر څوک به په مخه ورتلل وژل به یې .

۱۱۶- خلقیانو د ټولو انساني او بشري قوانینو او معیارونو خلاف د خلکو په شخصي شتو او حتی سرنوشت کې مداخله کول خپل حق ګڼي.

۱۱۷- په دې اړه یې په راډیو او اخبارونو کې د کشتمند او ځینو نورو کسانو د تحقیق پاڼې هم نشر کړې.

۱۱۸- د پکتیا د خلکو شفاهي روایت.

۱۱۹- اجتماعي، سیاسي او فلسفي اصطلاحات، څوونکی، ۱۳۵۸، پېښور.

۱۲۰- همدا اثر.

۱۲۱- همدا کتاب.

۱۲۲- د هرات د پاڅون په باب بېلابېلې رسالې خپرې شوې تفصیل هلته ولولئ!

۱۲۳- دا ویناوې او ... غیر انساني وړ چې امین یې هم په اخبار کې د چاپولو اجازه ... له راډیو څخه په مستقیم ډول براډکاست شوې.

۱۲۴- د جمعیت کلیز.

۱۲۵- په دې باب معلومات د پرچمیانو په وخت کې د ۱۳۶۰ کال په ژمي کې له راډیو څخه څو ځله او له تلویزیون څخه د یوه فلم په ترڅ کې نشر شول.

۱۲۶- د لیکونکي ځاني یاددا شتونه د عیني شاهدانو د خرګندونو له مخې.

[library stamp]

۱۲۷- دعیني شاهدانو څرګندونې .

۱۲۸- د جمعیت کلیز .

۱۲۹ همدا کلیز .

۱۳۰- د کلیز دیاد داشت له مخې .

۱۳۱- د دې پاڅون په باب د قلم د لومړي کال په ۱-۲-۳ ګڼو کې د ننګیال مقالې ولولئ !

۱۳۲- د لیکوال یاد داشتونه د عیني شاهدانو له خولې .

۱۳۳- سیاسي اصطلاحات .

۱۳۴- دعیني شاهدانو له خولې د لیکوال یادداشتونه

۱۳۵- د کمونستي سره سنګلاک په وړاندې د کابل تاریخي پاڅون څېړنمل محمد عارف غروال ، قام مجله ، لومړی کال ۳ ګڼه ۱۰ مخ .

۱۳۶- همدا مقاله ۶۲ مخ .

PROPERTY OF ACKU 298

۱۳۷- د جمعیت کلیز

۱۳۸- همدا کلیز

۱۳۹- د کلیز د یاد داشتونو له مخې

۱۴۰- همدا منبع .

۱۴۱- همدا اثر .

۱۴۲- له همدې منبع څخه .

۱۴۳- قیام بالاحصار ، د جهاد ثقافتي شورا خپرونه .

۱۴۴- قیام آسمار ، د جهاد د ثقافتي شورا خپرونه .

۱۴۵- سره کې ته روسانو هدایت ورکړچې امین له منځه یوسي خو

دامین واوریږي وراندې شو اوتره کې یې له منځه یووړ.

۱۴۶- دکابل تلویزیون لخوا اوږده موده دا اعلان خپریده.

[۱۳]

۱۴۷- دا مطلب د روسانو له رانګ سره دکابل راډیو په لومړیو ابلاغیو کې نشر شو.

۱۴۸- دا تړون تره کی په مسکو کې امضاء کړی او دافغانستان دکوم قانوني حکومت له خوا نه وُ ستړل شوی.

۱۴۹- وګورئ د ملکرو ملتو د منشور متن.

۱۵۰- د تفصیل له پاره وګورئ: ۱۲۳ راپې د روس د حکومیت نړیواله پربکړه، حبیب الله رفیع، قلم مجله، د دوهم کال څلورمه ګڼه، تر ۳۷ مخ وروسته.

۱۵۱- همدا مقاله.

۱۵۲- دکابل راډیو له لارې په څرګندونو کې نجیب شوخوځل دا دعوی کړې ده.

۱۵۳- د ببرک یوه راډیویي وینا چې په اخبارونو کې هم خپره شوه.

۱۵۴- دا جګړې د ۱۳۵۸ کال په سلواغه کې ونښتې.

۱۵۵- دا راپور په همغه ورځ د بی بی سی راډیو په پښتو او فارسي خپرونو کې مفصل نشر کړ.

[۱۳]

۱۵۶- په دې برخه کې د نړیوالو خبري آژانسونو، راډیوګانو او

دامیر عبدالرحمن خان په مقابل کې مسلح کړ څو د روسانو له پاره په افغانستان کې نور فتوحات و کړي خو مغلوب شو (۱٤).

تر ۱۹۰۵ع کال وروسته چې روس د جاپان په مقابل کې جنګ بایلود او مغلوب شو نو یو ځل بیا یې انګریزانو ته مخه کړه او په ۱۹۰۷ع کال کې یې له انګریزانو سره دیوه تړون په ترڅ کې و منله چې روسیه افغانستان د روس د نفوذ له ساحې نه د باندې ګڼي او د انګلیس د نفوذ ساحه یې بولي نو له افغانستان سره به د انګلستان د دولت له لارې دیپلوماتیک روابط ساتي (۱۵) او په دې توګه یې هغه افغانستان چې دوه ځل یې په انګریزانو وران کړی و داخل دوی ته رسماً تسلیم (؟) کړ (۱٦).

همدا راز د روس تشکیلاتکر دولت د لومړي نړیوال جنګ په موده کې خپل متحد دولت انګریزانو ته وعده ورکړه وه چې په افغانستان کې به د ملي پاڅون په وخت کې له انګریزانو سره مرسته کوي او هر ډول پاڅون به له پښو څخه غورځوي (۱۷).

# سریزه

کله چې کمونستانو په افغانستان کې سیاسي قدرت غصب کړ او بیا روسانو پر افغانستان وسله وال تیری وکړ له هر چا سره دا پوښتنې طرح کیدې چې روسانو په څه ډول په افغانستان کې رخنه وکړه او د روسانو دې تیری اهداف او ستراتیژی څه ده ؟

که څه هم په دې موضوع په تېرو یوولسو کلونو کې ډېرې مقالې ، رسالې او کتابونه ولیکل شول خو بیا هم د روس د نا ولسو اهدافو او تفتین په باب ډېر څه ناویلي او پټ پاتې دي .

دا رساله هم په دې برخه کې د همدې هدف له پاره لیکله شوې چې د روسانو د شوموا هدافو او تیری په باب څه نورې برسېرونې وکړي او دا توقع څکه ترې کیدای شي چې د دې رسالې مأخذونه په لومړي مرحله کې هغه قلمي اسناد او مکتوبونه دي چې تر اوسه لا خپاره شوي نه دي او په افغانستان کې د روسي دوستۍ یا روسي لاسوهنې له نویو اړخونو څخه پرده پورته کوي .

همدا راز د قلمي لومړي لاس چاپي اسنادو تر څنګ د پښتو

مختصر تحلیل هم لري او د روسانو هغه ناوړه عزایم چې له نیکه مرغه د مجاهدینو د بریالی جهاد په نتیجه کې شنډ شول، راسپړي.

زه په همدې منظور دا رساله ستاسو مخې ته بندم او که ولې کړای شول چې زموږ درد پدلی او مجاهد اولس ته څه نوی معلومات ولري او د دښمن د دسایسو او وساوسو په باب یې تل بیدار او څار وکړي نو ما د خپل زحراجر موندلی دی.

په مینه

زکي الله خان

پېښور

۲۱-۱۲-۱۹۸۹

# افغانستان

# او

# د روسي دوستی داستان

ليکوال

زکي الله خان

خپرونکی

د آزاد افغانستان د ليکوالو ټولنه (وفا)

○ دکتاب نوم: افغانستان او د روسي
دوستۍ داستان
○ لیکوال : زکي الله خان
○ خپروونکی: د آزاد افغانستان د لیکوالو
ټولنه (وفا)
○ خطاط: نورالدین "هنریار"
○ دخپرېدو کال: ۱۳۶۸
○ دچاپ شمېر: (۱۰۰۰) ټوکه

# فهرست

| مضمون | مخ |
| --- | --- |